# د اسلامي امارت

## پوځي او سياسي سوبې !!!

# څرک

څوارلسم کال، دويمه، پرلپسې ۹۷مه گڼه،
جدی۱۳۹۵ل ربيع الثاني۱۴۳۸هق، جنوري۲۰۱۷م



- آيا د افغانستان جنګ يو صليبي جنګ نه دی؟
- فراز و نشيب های ۲۰۱۶ ميلادی!
- پر افغانستان د امريکا د يرغل سطحي ستراتيژي !!؟
- دمرغومي ۲۱مې درې بريدونو ته کتنه
- د هيلو لمر يې څرک وهي...!

## د صليبيانو لوی قاتل
شهيد حافظ بدرالدين حقاني
ژوند او کارنامو ته کتنه

## په ۲۰۱۶ کال کې يرغلگر
او کوداکيان يې له پښو وغورځول شول!!

د امريکا ۳۰۰ عسکر به
دشکست خورده رژيم کوم درد دوا کړي ؟

د غور او بادغيس ولايتونو
د تعليمي چارو د هيئتی راپور

د مجاهد اخلاق او کردار
د شريعت په رڼا کې



علمي، فرهنګي، ټولنیزه اسلامي خپرونه





څوارلسم کال، دویمه، پرلپسې ۹۷مه ګڼه، جدی۱۳۹٦ل،
ربیع الثاني۱٤۳۸هق، جنوري ۲۰۱۷م


# لړلیك




امتیاز :

دا متیازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

مسؤل مدیر : عبید تنویر

لیکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حمید ، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

ګډون :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۱۸۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۲٤۰ کلدارې |
| امریکا : | ٦۰ ډالره |
| اروپا : | ٦۰ یورو |
| یوه ګڼه : | ۱٥ افغانۍ<br>۲٥ کلدارې |

یادونه

حتمي نه ده چې په ځرک کې خپرې شوې مقالې دادارې دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي څانګه



پتې :

srak_111@yahoo.com

سرمقاله

بسم الله الرحمن الرحیم

# د اســـلامي امــارت پوځي او سياسي سوبي !!!

دالله  تعالی دعظیم قدرت نصرت او د افغان ولس دزړه له تله مرسته وه چې امریکایی استعمار او ورسره په څنگ کې ولاړه ناټو د۴۹ هیوادونـو له مستقیمي همکاری سره سره ، داسلامي امارت مخلصو سپاهیانو او د الله تعالی د لارې پاک زړو مجاهدینو وکولای شول چې د خپلو مټو او مقدسو قربانیو په برکت یې غرورمات، ټکنالوجی یې ناکاره، دوه تریلونه ډالریې هدراوټول سیاسي اوشیطاني جالونـه اودامونـه یـې یوپـه بـل پسي-خنثی اوډړې وړې وگرځوي.

د اسلام او افغانیت دښمنانوفکرکړی وو چې دافغانستان له دولتي ودانیـو او حکومتي تاسیساتو لـه انخلا او وتلو وروسته بـه نـور د اسلامي امارت پوځي انسجام او برقرار نظم وشلیږي دقیادت او افرادو ترمنځ به یې د رابطي اوقومندي لیکي دهمیشه لپاره لـه منځـه ولاړې شي اوترهغـوچې بیادوئ سره کوشیراوټولیږي نوددوئ په خام فکربه افغانستان امریکا او نړیوال کفرله خپلې ناولې مرى تیر او هضم کړي وي.

خو امریکا، ناټو او حلقه بگوشو غلامانویې داحقیقت نه وو درک کړی چې اسلامي امارت دهغې عقیدې اودینـي روحیـي نـوم اواساس ده چـې هغه دامریکا( B-۵۲) او( ډرون ) الوتکې ، فاسفور او نور زهریله وسلې او نیمه اتومي بمونه نشي نړولای او نـه یـې دگوانتانـامو، بگـرام اوکابـل دملي امنیت زندانونه داسلام دسربکفه لښکر هیبت اوشمیر کمولای شي !!

له یوې نیمې لسیزي په زیاته موده کې امریکا، ناټواودکابـل مـزدور رژیـم خپـل ټـول زوروازمایـه ،هـرډول وحشت اوبربریت یـې پـه کـار واچـاو داسلامي امارت له غړو، مجاهدینواوافرادوڅخه علاوه یې هغه عام وگړي هم ونه بښل چې مجاهدینوتـه یـې کومـه شـپه اویـاکوم ماښـامنی ورکـړی دهغوئ په جونگړواوکورونویې هم بمونه درانه درانه وورول،چاپې یې پرې واچولې دبگرام اوکابـل ترجهنمـي زنـدانونوپورې ورسـول اوکلونـه کلونـه یـې سختي شکنجې ورکړي .

ولې ناصر رب ( جل جلاله ) داسلام دابدي غلیمانو او نړیوال طاغت دغه ټول اټکلونه درهم برهم اوبې معنا ثابت کړل، اسلامي امـارت پـه ډیرلږ وخت کې نه داچې بیرته منظم اودقیادت اولښکر ترمنځ یې ربط اوانسجام منځته راغی ، په ټول هیوادکې جهـادي جبهـي اودمقاومـت سـنگرونه ابـاد اوپه غورځنگوشول، چې په نتیجه کې الله تعالی دبې وسه اوتش لاسومجاهدینو په توسط امریکا، ناټو او دست نشانده اداره یې پـه هـر میـدان کـې له تاریخي شکست ، ماتې او تلپاتې رسواییو سره مخ او لاس گریوان کړل .

داسلامي امارت دجهادي قوت اوتاریخي مقاومت اثروو چې دامریکا تلونکي ولسمـشر ( اوباما)  دواک پریښـودولوپه ورسـتیوورځوکې پـه دې حقیقت معترف وگرځید چې دیوې نیمي لسیزي زور ازمایی باوجود امریکا طالب [ اسلامي امارت] مات اوکمزوری نه شو کړلای.

دامریکا نوي ولسمشر (ټرمپ ) دلوړي له مراسمو وړاندې له المانی ورځپـاڼي (بلیـد)  سره پـه خبروکـې پـه جهـر ووئیـل چـې دافغانستان جگـړه امریکاونشوای گټلې اوممکنه  نده چې دده ترمشرۍ لاندې اداره دې هم دا جگړه وگټي .

په پوځي میدان کې داسلامي امارت څرگند بري اوبرلاسي په پـاتې نـړۍ کـې هـم دامـارت سیاسي اودیپلوماتیـک بـري اوخوځښـت تـه زمینـه سازي وکړه ، د( چین ، روسیي ، پاکستان ، ایران ) اونورو هیوادونوپه شمول داغبرگونونه رامخې ته شول چې داسلامي امارت پـه سـیاسي  اوپـوځي ځواک سترگې پټول تیروتنه ده اوامریکایان په افغانستان کې بې اساسه جگړه پرمخ بیایي .

دکتونکوپه اند دسیمي اونړۍ په کچه داسلامي امارت په سیاسي حیثیت اعتراف اوداوباما په ژبـه دامـارت پـوځي برتـري تـسلیمول پرتـه لـدې چې ترشایې الهي نصرت اودملت دځوریدلوپرگنومظلومي هیلې، دعاگانې او د معصومو وینوبرکت وبلل شي بل قوت اودلیل یې شاته نه لیدل کیږی.

دعا کوو چې د استعمار په پاتې ځالو، دامونو او پلانونو باندې هم الله تعالی تزلزل گډ او د مجاهدینو هیبت یې په زړونو کـې ور وغورځـوي چـې ژر تر ژره د افغانستان له پاکې ځمکې او مجاهد ټاټوبي څخه پښې‌سپکې‌او اشغال ته دپای ټکی کیږدي (امین ).



# په ۲۰۱۶ کال کې یرغلګر

## او ګوډاګیان یې له پښو وغورځول شول!!

( خلیل . عزیز)

تیر۲۰۱۶ م کـال چـې ۳ میاشـتې د(عزم) او۹ میاشتې پکې (عمري) فاتحانه عملیـات لـه خپـل ټـول جـدیت سره روان وو داسـلام مخلصـواو سـپیڅلو سـپاهیانو دهیـواد پـه لراوبرکـې پـه خـارجي اوداخـلي غلیمانوځمکه داسې تنګه اوسره تبی کړه ، چې هـم مجاهدینولـه خپلوسـنګرونو او۸۰ فیصدسیموڅخه په کلکه دفاع اوساتنه وکړه ، هـم یـې لسـګونه ولسـوالی اوسـوونه بیزونـه اونظـامي مراکـز دمـزدور رژیـم لـه تسلط څخه ازاد اوفتحه کړل!!

دکابـل پرسوده اوحلقه بګوش رژیم دکال په سرکې داغـورځي پرځـې کـړي وي اوخپلوبادارانوتـه سینه ډبولي وه چې کـه تاسـې رابانـدي دډالرواوپـوځي تجهیزاتـو مرستـې روانـې وسـاتی اوهـوایي ځـواک موراسره اوږه پراوږه مل وي ، نودوئ بـه پـه ټول هیوادکې دخپل مفسد اوشوکمار رژیم جرړي زغلوي اومجاهدین به له هغو سیمو څخه پرشااوورسته کـړي چې اوس یـې پـه واک اوولکه کې لري

بادارانویې هم داکتوبرپه میاشت کې دبروکسـل غونـډه راوبللـه اودکابـل رژیـم دسـیاسي اوپـوځي ملاتـړداعلان ترڅنـګ یې د۱۵ ملیاردوډالرودسلسله وارې مرستې ژمنـه ورسره وکـړه ، خـوشرط یـې داپـرې کیښـودچې ددوئ بـه لـه طالبـانوسره کلکـه جګړه کـوي اوپـه اصطلاح زوربـه یـې اوبـه کوي!!!

خودالله تعالی په خاص مدداونصرت سره مجاهـدینودمزدور رژیـم دغـه ټـول پلانونـه اوداسې نور یوپـه بـل پسې شنډاوله کـاره وغورځـول پـه دې سربیـره چـې مجاهدینوپه ټول هیوادکې له خپلومفتوحه سیمواوسـنګرونوڅخه کلکـه دفاع اوساتنه وکړه متقـابلایې دګوډاګي رژیـم پـوځي او امنیتـي قطعـات ترکلکواوشـدیدو بریـدونو لانـدې ونیـول دبګـرام دسترې امریکـایي اډې په شمول یې دداخلي اوخارجي غلیم حساس اوخوندي مراکز ترتهاجمي بریدونو لانـدې راوسـتل، دکابـل رژیـم بـې شمیره مضرـاوخطرناک چـارواکي یـې دچریکـي اوتکتیکـي بریـدونو پـه تـرڅ کـې لـه منځـه یوووړل

دمغروردښـمن ګنـې هغـه الـوتکې اوچورلکې یې رانسکورې اوراوغورځولې چې غلیم داکار داسلامي امـارت لـه وسه پورته ګڼه ، چې (طالبان) دامریکـامجهز هـوایي ځـواک تـه هیڅکلـه ضرراوصدمه نشيـ رسولي ، خودکال په اوږدوکې ولیدل شول دامریکـا(ایف ۱۶ ) الوتکه اونیـږدي (۱۰ ) نـوري چـورلکي مجاهدینودهیوادپــه بیلابیلوبرخوکې راوغورځولی .

لـه بـل لـوري دکابـل رژیـم واکمنـو اوبادارانو یې په مکرړدول داشعارونه ورکول چې دکنـدوز ښـار بـه هیڅکلـه هـم بیـا دطالبـانو پـه لاس سـقوط ونکـړي اوپـه هلمنـدکې بـه دطالبانودمذیدپیشرفت مخه حتما ډب کوي

لورونکي رب ( جل جلالـه ) داسلام اوهیواد دښمنانودغه ټولي غورې اودربې یوه یوه دروغ اوبې اساسه ثابته کړه کله چې داسلامي امارت اتل ځواک وغوښتل کندوز اوپه هلمند کې تصفیوي عملیاتوشروع کړي پـه ډیروکمـو امکانـاتواولږو تلفـاتو دڅلـور ساعتونوپه اوږدوکې کندوز د مجاهـدینو په لاس فتحه اودبګیلي اردو، شریرو اربکیانو اونورو ملیشو(۱۲) زرېز لښکر یـې پـه ډیـرې اسانی تارومار اوله کنـدوز څخـه تیښـتي تـه اړکړ!!

دغـه راز دهلمنـدولایت ددفـاع لپاره دکابـل اداري هلتـه پـه موجود(۴۰ ) زریـز قوت سربیره په زرهاوو نورځانګړي قطعات اوخاصي ملیشي استخدام اووروليږلي ولې الله تعالی مزدوردښـمن لـه داسې انجـام اوسرنوشت سره مخ کـړ چې هـم يـې ټولې ولسوالی لـه لاسه ووتې ،پـه هغوسربیره يې پـه زرګونوعسکرله خپلوپوځي امکاناتو اوتجهیزاتو سره یوځای دمجاهـدینو لیکوتـه سـلامي شـو اوخـبره دهلمنـد دمرکـز لښکرګاه ښار ته ورسیده ، چې په پایله کې مجاهـدینو وکـولای شـول خپـل قوونونـه دلښکرګاه تر (پنځمي) امنیتي حوزي پورې ورسوي ، یعني په هلمندکې هـم دښـمن تـه دسرپه کاسه کې اوبه ورکړل شوي ، کلک شکست اوتاریخي رسوایي په برخه شوه .

دبګــرام پــه اډه دری ځلــه مهــم عملیات تـرسره شول اوهرځـل پکې ګڼ شمیرامریکایان دجهنم کندي تـه ولیږدول شـول دیـوې شـمیرې لـه مخـې پـه دریوواړوبریدونوکې ترسلوپورې امریکایـان یامړه اویاهم زخمیان شوي دي

د کابـل هـوایې ډګـر تـه څېرمـه دخارجیـانو د بـاران کمـپ پـه پوسـتوعمده عملیـات تـرسره شـول اودرانـه تلفـات ور واوښـتل ، دکابـل اداري ستراوحسـاس استخباراتي مرکز ( لسم ) ریاست په بل مخ نسـکور اوپـه سوونوجاسوسـان اولوړپـوړي استخباراتي مسؤلین پکې لـه منځـه یـووړل شـول ، ددفـاع وزارت ودانــی مـخ تـه داجیـررژیم مهـم جـنرالان هـدف وګرځـول شول پـه همدې ورځ دکابل ښار د شهرنو په سیمه کې د استخباراتو په مرکز مهـم برید وشو چې له امله يې دپنځـو جنرالانـو اونـورو لوړ پوړو افسرانو تـر څنـګ لسګونه عسکر مړه او تر ۱۰۰ ډېر نور ټپیان شول

دغـه رازدهیوادپـه نوروبرخـوکې لکـه روزګان ، بغلان ، ننګرهار ، پکتیا، فاریاب ، فـراه ، نورسـتان اونـورو ولایتونـوکې هـم ددښـمن لــه قبضي- ګنـې ولسـوالی ، سترستربیزونه اوپراخې سیمي دمجاهـدینو لاسوته ورغلی

پـه همـدې ډول دهیوادپـه هرکـونج اوکنار کې یرغلګر او ګوډاګیـان دمجاهـدینو ترشدیدو حملو او پـوځي فشارلاندي ول لـه کابل ښار پرتـه پـه ولایتونـو کـې ولسوالی یادمجاهـدینو ترمسـتقیمي واکمنـی لانـدې وي اوکـه دکومـو ولسوالیو ودانـی داجیـرې اداري پـــه لاس کـــې وي هغـــوئ دخپلـو تعمیراتـو بهـر داجرااتـو هـیڅ ډول فعالیت اوتحرک نه درلود بلکي محصورپاتي ول .

د۲۰۱٦ کــال همــدغو فتوحاتواوپــه هرمیـدان کـې څرګندولاسـته راوړنوداسـلام دابدي دښمنانوپه زړونواوذهنونوکې داهیبت اوبیم وردننه کړچې داسلامي امـارت پـه نـه ماتیدونکي قوت په خپله ژبه اعتراف وکړي

دامریکـا ولسمشر- ( اوبامـا) څـواونی وړاندې دامریکاپوځي اوامنیتي بنسـتونویوې لویې غونډې تـه وویـل چـې پـه افغانسـتان کـې یـې پـوځي ماموریـت ناکـام و اوپـه مشخص ډول امریکاله یـوې نیمـې لسیزې جګړې ورسته هـم پـه دې ونتوانیـده چـې طالبان مات اوکمزوري کړي!!!

دهغـه پـه تعقیب د امریکـا ددفـاع وزارت (پنتاګون ) پـه یوځپاره شـوي راپـور کـې وویـل چـې افغـان ملـي اردواوامنیتـي ځواکونـه ددې تـوان نـه لـري چـې لـه طالبانوسره جګړه وکړي اویا تصفیه شوې سیمې وساتلی شي.

نـوویلای شـوچې د۲۰۱٦ کـال شـپې ورځـې پـه افغانسـتان کـې امریکـا، نـاټو او دکابـل رژیـم تـه لـه هـرډول شکسـتونو ، رسـواییو اوخجـالتونوډکي وي ، پـه سـوونه خارجي عسکراوپه زرهـاوو غلامـان يـې لـه منځه یـوړل شـول ،پراخـې سیمي يـې لـه لاسـو ووتلـې اوپـه نړیـوال میـدان کـې دامریکایـانو پـه ګـډون دوسـت اودښـمن ومنلـه چـې اسـلامي امـارت هغـه پـوځي اوسیاسي قوت دی چې مـاتول يـې ناشوني اودامریکا اوناټودوس کار ندی ، نومعقولیت په دې کې دی چې دافغانستان اشـغال تـه دپای ټکی کیښـودل اواسلامي امـارت سره دمعقولیت په ژبه برخورد وشي

پـه دې هیله چـې داسلام ، انسانیت اوافغانیت دښمنان له یوې نه بلې ورځـې تـه نوررسوا اوټولې شیطاني کړنې اودسیسي يې برملا شي ، دعاکوو چې په پاتي افغانستان کې هم داسلام اونجات سپین توغ ورپیږي اوافغانـان نورداشـغال لـه سـتم اووحشـت څخه دتل لپاره نجات پیداکړی ، امین یارب العالمین

# فراز و نشیب های

# ۲۰۱۶ میلادی!

نویسنده : قاضی عبید

در سال گذشته میلادی حکومت دست نشانده و ساخته شده جان کیری با پشتیبانی حامیان غربی ، مصارف میلیونها دالر و قربانی هزاران جوان ناآگاه و فریب خورده نتوانست ثبات سیاسی و سلطه نظامی خود را حفظ نماید ، زیرا پایه های این نظام استوار بر دفاع از منافع غربی و در رأس آمریکا میباشد.

ظلم ، استبداد، وحشت ، قتل مردم بیگناه ، رشوت ، خیانت و فساد از جمله عوامل میباشد که ملت را وادار نموده تا از حکومت تحمیلی فاصله گرفته بیشتر از پیش با مجاهدین امارت اسلامی برای آوردن یک نظام اسلامی در فضایی اخوت ، برابری و برادری همگام و همکار شوند.

در سال پیش حامیان نظام متزلزل کابل کوشش های زیادی به خرچ دادند تا دشمنی ها و بدبینی های داخل سران حکومتی را حل و همه شان را دور یک میز جمع نمایند تا باشد سالها زحمت و خواری آمریکا برای تشکیل یک دولت غلام هدر نرود ، ولی با آن هم اختلافات و بی باوری ها میان سران اداره کابل به حدی نهایی آن رسیده، ریس جمهور نام نهاد ارگ با ریاست اجرایه خود در زد و خورد میباشد ، شوری نظار به جان هم افتاده هرکه منافع شخصی خود را دنبال می نمایند و از همه جالب تر اینکه مرد شماره دوم این نظام فاسد متهم به فساد اخلاقی شده و آوازه بدنامی شان از مرزها عبور نمود که لطمه بزرگی بر پیکر شان میباشد.

در عرصه نظامی دشمن در سال گذشته مورال جنگی را از دست داده و در تمام میادین در جنگ های رویاروی با مجاهدین فرار را بر قرار ترجیح می دادند و یا اینکه فوج فوج با تمام وسایل و امکانات در دست داشته شان به مجاهدین تسلیم میشدند ، فتح دوباره قندز ، سقوط ولسوالی های ولایات مختلف کشور ، رسیدن دامن نبرد میان حق و باطل تا داخل شهر های بزرگ مثل هلمند ، ارزگان ، بغلان ... رهبری عملیات های بزرگ شهری و هدف قرار دادن دشمن در امن ترین اماکن ، عملیات استشهادی داخل قوی ترین پایگاه نظامی اشغالگران امریکایی در بگرام را میتوان از نصرت پروردگار و دست آورد های مجاهدین در سال گذشته دانست.

بر علاوه دست آورد ها و پیروزی های پیهم در میدان نظامی مجاهدین توانستند تا ملت مسلمان و مجاهد پرور افغانستان را در کنار خود داشته و برای رفع و آرامش شان برنامه های بزرک عام المنفعة را روی دست بگیرند ، در تمام ساحات زیر کنترول امارت اسلامی مکاتب و مدارس بروی فرزندان این کشور باز بوده و بشکل قابل توجهی از سوی مسولین معارف پیگیری میگردد ، موسسات توسعه‌ای، شرکت های برق رسانی ، شرکت های

سرک سازی و غیره طبق قانون ، مقررات و لایحه امارت اسلامی آزاد بوده و مانع در کار شان برای خدمت رسانی به مردم وجود ندارد .

در سال گذشته میلادی بزرگترین حادثه آنهم شهادت پرافتخار امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور (تقبله الله ) بوقوع پیوست که دریچه ای تخیلات بی‌معنی را بروی دشمن باز نموده و حدث میزدند که گویا با شهادت زعیم امارت اسلامی اختلافات بر سر تعین زعیم جدید میان مجاهدین بروز نموده و در جریانات جهادی شان تأثیرات منفی رونما میگردد ، ولی لله الحمد تعین شیخ القرآن و الحدیث هبة الله آخندزاده( حفظه الله ) بحیث امیرالمؤمنین و زعیم امارت اسلامی با اتفاق همه ، امورات جهادی یکبار دیگر شدت گرفته ، صفوف مجاهدین آراسته تر و فتوحات زیاد تر گردید که تمام دسیسه ها و نقشه های دشمن در نطفه خنثی و امید شان به یأس و ناامیدی مبدل گردید.

در سال گذشته میلادی دشمن برای استقرار پایه های نظام از هم پاشیده و شکست خورده برنامه ها و پروژه های زیر نام صلح را در پیش گرفت چون میدانست که دیگر تاب توان رویاروی را با مجاهدین ندارد که در عملی نمودن نقشه های خود تا اندازه کامیاب و تعداد فریب دسیسه های دشمن را خورده در دام شان تحت نام ( صلح بین الأفغاني ) گیر افتادند ولی با آن هم نتوانستند که صد جلوی پیشروی ها و دست آورد های مجاهدین قرار بگیرند.

مهم ترین چیز را که قابل ذکر میدانم اعترافات اوباما مبنی بر شکست آمریکا و ناتو در افغانستان میباشد ، اوباما در یک کنفرانس در اواخر سال ۲۰۱۶ میلادی و نیز آخرین روز های ریاست جمهوری خود چیز را که هیچکس انتظار آنرا نداشت و حتی تعداد تصور هم نمیکردند به زبان آورد آن اینکه آمریکا در افغانستان شکست خورده و توان از بین بردن طالبان را ندارد ، نبر و مبارزه جزی از زندگی افغانها میباشد ، از سخنان اوباما میتوان به خوبی دانست که افغانها در طول تاریخ به هیچ زور گوی و اشغالگری سر تعظیم خم ننموده و در راه دفاع از عقاید اسلامی و وجب وجب خاک خود حاضر به هرنوع قربانی میباشد.

در اخیر باید گفت جای بسا خوشحالی و خرسندی میباشد که امروزه ملت نجیب افغانستان در کنار مجاهدین بوده ، دشمن مورال جنگی و انگیزه برای ادامه آن را ندارد ، اداره کابل روز به روز حیثیت خود را نزد مردم و حتی حامیان خود از دست داده به رکود مالی و ضعف سیاسی ، مواجه میباشد.



# طالبان، ۲۰۱۶م کال - ننګوني او برياوې!!

موسی فرهاد

تېر مېلادي ۲۰۱۶م کال يوازې د طالبانو لپاره د نوښتونو کال نه و ، بلکې په نړيواله کچه داسې نوې پېښې په کښې را منځ ته شوې چې د راتلونکو سترو بدلونونو ښکارندويي کوي.

د بېلګې په توګه د امريکا په ولسمشر-يزو ټولټاکنو کې د توقع خلاف هېښنده بدلون، په سوريه کې د روس او امريکا علنې سيالي او ظاهراً د روسانو برلاسي، له اروپايي ټولنې نه د بريطانيا وتل او په ټوله کې د لومړي ځل لپاره د اروپايي اتحاديې د له منځه تللو آثار را برسېره کېدل ، د ناټو د نظامي ټلوالي پر نورو اروپايي غړو د نوي امريکايي مشر- ډونالډ ټرمپ بې باوري، د عربي نړۍ خصوصاً سعودي عربستان او ايران ترمنځ د اوږدې مودې سړې سيالۍ شکل بدليدل او په مخامخ جګړيزه هغه بدليدل ، د امريکا په وړاندې د روس+چين په سرکردګۍ کې په تيزۍ سره د يو خاموشه بلاک رامنځ ته کيدل ، په افغانستان کې د امريکا د تاواني ښکيلتيا په اړه د امريکا په پاليسي- کې تزلزل او د يوازيتوب او ناکامۍ احساس، په سيميزه کچه د چين له لوري د چينايي سياست او اقتصاد رول زياتول ،،، دا او دې ته ورته نورې ورې او لويې بيلګې شته چې په تېر عيسوي ۲۰۱۶م کال کې يې بروز کړی او په نژدې راتلونکي کې يې له امله د سترو بدلونونو د رامنځ ته کيدو اټکلونه په يقين بدل شوي دي.

تېر ميلادي کال د طالبانو لپاره هم له نوښتونو ډک کال بلل کيدای شي ، له يو شمېر ننګونو سره سره يې داسې برياوې هم ترلاسه کړې چې له وړاندې يې دومره پياوړې اټکل نه کيده.

### د طالبانو په وړاندې ننګوني

– ۱د طالبانو لپاره ترټولو لويه ننګونه دا وه چې د يوه کال په دننه کې د دوهم ځل لپاره د زعامت له خلا سره مخ شول ، ملااخترمحمد منصور چې د طالبانو ډېر پياوړی سياسي او پوځي رهبر و ، د ۲۰۱۶م کال په پنځمه مياشت کې د امريکايي ډرون الوتکي په وسيله شهيد کړل شو . دا د طالبانو لپاره خورا لويه غميزه او ستره ننګونه ځکه وه چې تر دې يو کال وړاندې د مخکني أمير، ملامحمدعمر مجاهد د وفات واقعه رامنځ ته شوه او په پايله کې يې د نوي انتخاب پرځرنګوالي يو لړ اختلافات را پيدا شول.

– ۲دويمه ستونزه د طالبانو لپاره په نظامي برخه کې د پرمختګ چاره وه، چې آيا نوی زعامت ؛ چې پوځي وړتيا يې د مخکنيو مشرانو په پرتله کمه ګڼل کيږي ؛ آيا هغه به وکولای شي چې دا پيچلي چريکي او جبهي جګړه په برياليتوب سره پرمخ يووړلای شي.

– ۳دريېم مشکل دا اټکل کيده چې په طالبانو کې موجود نارضايتونه چې له وړاندې يې شتون درلود ؛ ممکن نور هم دومره پراخ شي چې د ټوټه کيدلو باعث وګرځي.

– ٤څلورم چيلنج دا و ، کله چې د نظامي چارو په پرمخ بيولو کې د نيمګړتيا ګمان کيده او په عين حال کې د داخلي ناخوښيو د زياتيدلو وېره وه ؛ نو طبعي ده چې په سياسي ميدان کې به هم طالبان له رکود سره مخ کيږي ، په داسې حال کې چې تردې مخکې دوی د سياسي ارتقاء په حال کې وو.

– ٥پنځم ازموينښت د مالي ستونزو د کمولو لارې چارې وې ، ځکه چې د پورتنيو

ځلورو واړو چیلنجونو په شته والي کې مالي بحران هم حتمي ګڼل کیدای شوای.

مګر داچې طالبان پر دې ستونزو څنګه لاس بري شول او څنګه یې وکولای شوای چې له دې ټولو ننګونو څخه نه یوازې داچې په بریالیتوب سره ځان خلاص کړي ؛ بلکې تر اتکل زیات یې د دې هرمشکل په مقابل کې پرمختګ وکړ.

**طالبانو څنګه د دې ننګونو مقابله وکړه..؟**

کله چې د طالبانو د مخکني مشرـ مرحوم ملااخترمحمد منصور د شهادت خبر خپور شو او خپله اوباما د امریکا لپاره دا یوه ښه لاس ته راوړنه او بریا وګڼله ، او په څنګ کې یې د کابل حکومت هم په دې زیاته خوښي څرګندوله.

دوی ټولو فکر کاوه چې دا ځل د طالبانو ترمنځ ژور اختلافات حتمي رامنځ ته کیدونکي او په دې توګه دوی له منځه تلونکي دي.

خو برعکس دامریکا دا ډول کړنه او دا ډول اظهاراتو په معنوي لحاظ پر ټولو افغانانو خصوصاً پر طالبانو یو قسم بد اغیز وکړ ؛ چې په نتیجه کې یې دوی هغه اختلافات چې درلودل ؛ هم هیر کړل او په سل سلنه متفقه شکل یې د نوي زعیم په انتخاب کې هڅه وکړه ، ټولو نظامي قومندانانو ، سیاسي مشرانو ، دیني علماؤو او نورو وګړو یې د بیعت او ملاتړ آواز اوچت کړ.

ځینو هغو خلکو چې د مخکني زعیم د انتخاب په اړه یې ملاحظات لرل او نا خوښه وو ؛ هغوی هم له نوي مشرـ سره یو په بل پسې بې له قید و شرطه بیعتونو ته لاس ور اوږد کړ.

د نوي امیر شیخ هبة الله صاحب له ټاکل کیدو سره سم په هیواد کې د پوځي عملیاتو څپه هم خورا ګرمه او تونده شوه ، تر دې چې په لسګونو ولسوالۍ د طالبانو په لاس په کامل ډول سقوط شوي . د شپږو مهمو ولایتونو مرکزونه ، لکه هلمند، ارزګان ، فراه ، بغلان ، کندوز ، میدان وردګ او داسي نور ... د طالب ځواکونو تر کلکي محاصرې لاندي راغلل چې تر همدا اوسه یې د سقوط خطر پرځای پاتی دی.

د کال په اوږدو کې جګړو په ټول هیواد کې دومره زور واخیست چې امریکایانو خپله هغه ستراتیژي او تګلاره بدله کړه ، چې ویلی وو امریکایی عسکر به نور په جګړو کې برخه نه اخلي او د شپاړسم کال ترپایه به د خپلو ځواکونو شمېر کموي ، دا هرڅه یې پریښودل ، د کابل ادارې د بیا بیا غوښتنو او فریادونو او د طالبانو له لوري د جدي خطر د محسوسولو له امله اوباما خپلو عسکرو ته د هوایي او ځمکنیو او شپنیو عملیاتو د ترسره کولو پراخه اجازه ورکړه.

چې په نتیجه کې یې د امریکایی قومندان په خبره په څلورو میاشتو کې ۷۰۰ ځله هوایي بمبارونه ترسره کړل.

چې له امله یې څو ځله د سلګونو هیوادوالو د وژلو بشري فاجعې رامنځ ته شوي . خو بیا یې هم ونشوای کړای چې د طالبانو د تکتیکي بریدونو مخه ونیسيـ او هغه سیمي چې د کابل له حکومتي ځواکونو یې نیولي وي ؛ بیرته حکومت ته ور وګټي.

**په دې اړه د یو راپور لنډیز**

د طالبانو له لوري په خپاره شوي راپور کې راغلي چې دوی د تېر کال په جریان کې ټول ټال (۹۱۵۳) عملیات ترسره کړي ، چې په اوسط ډول هره ورځ ۲٦ بریدونه کیږي.

دوی ویلي چې د تېر کال په اوږدو کې (۲٦٦) تنه بهرني عسکر وژ ل شوي او (۱۳۵) نور ټپیان شوي دي. طالبانو په تېر کال کې کورنیو عسکرو، پولیسو او اربکیانو ته د اوښتي مرګ ژوبلې په اړه هم ویلي چې هغوی چونکه د امریکایی ځواکونو په مخکې د سپر غوندي جنګیږي نو ځکه ترټولو زیات ځاني تلفات دوی ته رسیدلي چې تقریباً (۱۷۵۳۹) تنه وژل شوي او (۱۱۲۷۲) ټپیان شوي دي.

طالبان زیاتوي چې په تیر کال کې په ټول هیواد کې د دښمن (۲۸) چورلکې او طیارې رانسکورې شوي دي چې (۱٤) یې چورلکې، (۱۰) یې بې پیلوټه الوتکې، (۲) ایف-۱٦ الوتکې او (۲) نورې غټې بار وړونکي نظامي الوتکي په کې شاملې دي.

همداراز دوی وایي چې د دښمن (۳٤۲۷) بیلابیل وسایط ، لکه شوبلې ، رینجر ، ټانګونه او داسی نور ... یې تخریب کړي دي.

لـه بـل پلـوه د امریکـایی ځواکونـو عمومي قومندان جنرل نيکولسن وويـل : چې يوازې د جنوري په میاشت کې ۹۰۰ افغان عسکر له طالبانو سره پـه جګـړو کـې وژل شوي ، او د ناټو ځواکونو ویانـد کلیف لینډ وویـل چـې پـه ۷ میاشـتو کـې قریـب ۵۰۰۰ افغان عسکر وژل شوي.

بل طرف ته افغان عسکرو ، پولیسو ، اربکیـانو او نـورو ملیشـو هـم د مقاومـت او جګړې مورال لـه لاسـه ورکـړ ، هرځـای پـه لسـګونو او سـلګونو تنـو لـه جګـړې لاس واخیست او لـه طالبـانو سره یوځـای شـول ، په ارزګان کې یو پوره کنډک چـې ۱۵۰ تنـه عسکر پکې میشت وو ؛ طالبـانو تـه لـه ۳۰ شوبلو او زرګونو میلـه وسلو او وسـایطو سره یوځای تسلیم شـول . دا راز پـه هلمند کـې یوه قرارګاه چـې ۷۰ تنـه د ملی اردو عسکر وو ؛ له وسلو او مهماتو سره تسلیم شول.

نـو د جګـړو دا ډول زور اخیسـتـني د کابل حکومـت او د هغـوی بهـرني ملاتـړي هک حیران کړل ، د دوی هغه اټکلونه چې د طالبانو د مشرتابه په له منځه تللو بـه سـم وخیژي ؛ غلط ثابت شول.

**د اختلافاتو او نارضایتونو لـه منځـه وړل**

الف – لکه مخکي چې یادونـه وشـوه پـه کـوم شـکل چـې ښـاغلی منصـور د امریکایانو او د هغـوی د سیمیزو همکـارانو له لوري له منځه یووړل شو او بیا امریکایانو او افغـان ملاتـړو یـې وربانـدي ترحد زیاتـه خوښـي وښـودله ؛ دې ټکـي طالبـان دې متوجه کړل چې هر ډول اختلافـات يـې تـر ډېره حده شاته پریښـودل . او نـور هـم سره یو موټی شول،

ب – دویم داچې د طالبـانو نـوی امیر شیخ هبة الله صاحـب چونکـه یـو سـتر دینـي عالم دی ، رقابتونه یې په وړاندي نشته او یا بیخـي کـم دي ، هرڅـوک ورتـه د قـدر پـه سترګه ګوري ، نو هرچا چې لـه مخکـي کـوم سطحي اختلافات او یا ملاحظات درلودل ؛ هغوی هر یوه یې دعوت پرته لـه کـوم قیـد و شرطه ومانه . او ټولو یو په بـل پسـی بیعتونـه وکړل.

**سیاسي پرمختګ**

۲۰۱۶م کـال د تیـري یـوې نیمـي لسيزې پـه پرتلـه د طالبـانو لپاره داسـی یـو کـال وو چـې هغـوی پـه سیمیزه او نړیوالـه کچه یو ښه سیاسي وجاهت ترلاسـه کـړ . د دې یو ښه ثبوت د مسکو وروستۍ غونډه ده چې د امنیت شورا دوه دائمي غـړي روس او چین پکي شریک ول او په علني ډول یې د امنیت شورا لـه لـوري د تـور لیسـت څخـه د طالب مشرانو د ایستلو غوښتنه وکړه.

د ځیرونکـو لـه نظـره دا ځکـه یـو ډېـر مهم سیاسي پرمختګ دی چې طالبـانو تـه دا امتیـاز د دوو سـترو نړیوالـو ځواکمنـو هیوادونو لخوا پـه داسـی حـال کـې ورکـول کیږي ، چې هغوی (طالبان) نه خو خپله په یاده غونډه کـې شریک ول او نـه یـې د دا ډول سیاسي رسمیت پیژنـدني غوښـتنه ، د څـه معـاملې پـه بـدل کـې لـه دوی کـړې ، بلکي دا د دې ثبوت دی چې طالبـان د یـو ریښـتیني واقعیت او د افغانسـتان د اصلـي نماینده په حیث اوس نړیوال پیژني.

زما په فکـر ، دې مسـئلې لکـه څـومره چې طالبانو ته یو نوع ښـه سـیاسي وجاهـت ورکړی ؛ په همغه اندازه یې په مقابل کـې د افغـان حکومـت سـیاسي حیثیـت تـه لویـه ضربه رسولي . لـه همدې ځایـه وه چـې د کابـل حکومـت يـې پـه وړانـدي د سـختي مایوسۍ غبرګون وښـود . ځکـه چـې اشرف غني په دې وروسـتیو کـې د طالبـانو د نـوي مشر شیخ هبة الله صاحب نوم پـه تورلیسـت کـې د داخلیـدلو غیرقـانوني غوښـتنه ، او د حکمتیار د نوم د ایستلو مطالبه وکړه.

نو نه یوازې داچې د هغه غوښـتني تـه تراوسـه مثبت ځـواب نـه دی ویـل شـوی، بلکي د چین او روسیې لخوا چې د امنیت شورا دائمي غړیتوب لري ؛ د طالبانو د نـورو مشرـانو پـه اړه هـم د تـور لیسـت د ختمولـو غوښتنه وکړه.

د دې ترڅنګ طالبانو په هیـواد کـې د سـولې پـه اړه هیـوادوال تـر ډېـره داسـی وپوهول چې د سولې پـه نـوم چـې د کابـل اداره او د هغوی امریکـایی ملاتـړي کـومي نارې وهي ، دا ریښتیني نـه دي . بلکـي یـو تزویـر او دوکـه ده . پـه قطـر کـې پـه دې وروستیو کـې یـوه ډلـه بـې طرفـه هیـوادوال ژورنالستان ، د پوهنتون استاذان ورغلـل لـه طالب استاذو سره یـې درې ورځـي د سـولې او نورو اندیښمنو مسائلو په اړه علنـي خبـري او پوښـتني وکـړې چـې د هغـوی ځوابونـه ترډېره د خلکو لپاره قانع کوونکي وځلیدل.

دا راز په وروستيو کې د ټولګټو پروژو ساتني ته د طالبانو ژمنتيا ، او په ورځنيو عدلي او حقوقي قضاياوو کې له هيوادوالو سره همکارۍ هم د طالبانو محبوبيت زيات کړی دی . ځکه چې په مقابل کې يې د کابل د حکومت قضايي سيستم دی چې بنسټ يې پر رشوت ايښودل شوی ، څه موده وړاندې رسنيو د يوې سروې راپور خپور کړ چې ويلي وو په تېر يوه کال کې د کابل اداري قضايي او نورو چارواکو له هيوادوالو څخه ۳-ميليارده ډالره په رشوت کې اخيستي دي. نو طبعي ده چې په داسې برملا بډي اخيستونکي نظام کې د هيوادوالو ستونزي هيڅکله هواريدی نشي- بلکي د ژوند چاري يې په ټپه ودروي.

**طالبان او د هغوی مالي حالت**

حقيقت دا دی چې طالبانو له وړاندې هم کوم ستر مالي منابع نه درلودل او نه يې لري ، حتی د اسلامي امارت د حاکميت پرمهال هم پر هغوی باندي د امريکايانو په امر د نړيوالو له خوا اقتصادي بنديزونه لګيدلي وو ، بيا چې يې نظام د امريکايي يرغل په پايله کې سقوط شو ، او د دوهم ځل لپاره يې د هيواد د آزادۍ په موخه چريکي جهادي مقاومت پيل کړ ، مالي امکانات يې د نيشت برابر وو ، يوازي د هيوادوالو مرسته ورسره وه چې په کورونو کې به يې د ډوډۍ ورکولو انتظام کاوه . تردې چې له چريکي جګړو څخه يې مقاومت جبهي جنګونو ته ورسيد او په پراخه پيمانه يې وخت په وخت غنيمتونه ترلاسه کړل.

د دې ترڅنګ په هيواد کې دننه او بهر د هغو متطوعينو مسلمانانو مالي کومکونه وو چې د خپلو حکومتونو په پټه يې له طالبانو سره د يوې الهي فريضي د پرځای کولو په موخه د انفاق فی سبيل الله په شکل کې کول ؛ چې هغه تراوسه پوري هم جريان لري ، او څومره چې د طالبانو عمليات پراخيږي هومره ورسره د خلکو مرستې زياتيږي ځکه چې هغوی ټول دا مرستې د خپل احساس له مخې کوي او هغوی د مجاهدينو اړتياوي محسوسوي چې اوس يې د پخوا په پرتله ضرورتونه زيات وي.

له بل پلوه اوس طالبان په هيواد کې دننه تقريباً يو منظم حکومتي تشکيلات لري ، له لويو ښارونو او مراکزو پرته د هيواد پر ٪۷۵ فيصده خاوره مجاهدين واکمن دي او په دې کې چې څومره سرکاري عايدات دي ؛ هغوی ټول اوس د طالبانو مالي بوديجی ته ځي ، چې هم يې هيوادوالو ته د امنيت او قضايي چارو آسانتياوي مهيا کړي او هم يې د فساد ، غلا او رشوتونو مخه نيولي. په همدې آساس هيوادوال هم دې ته تيار دی چې سرکاري مالي عائدات طالبانو ته ورکړي . د بيلګې په توګه د مخابراتي سيستم ، بريښنا ، ترانسپورټ ، معادن ، سوداګري ، زراعت ، مالدارۍ او داسې نور منابع چې ماليات اخيستل يې قانوني او شرعی جواز ولري ، مجاهدين يې مالي عائدات ترلاسه کوي او په بدل کې يې هيوادوالو ته مربوطه اړينې آسانتياوي برابروي.

دا چاره هم د پخوا په پرتله په تېر شپاړسم ميلادي کال کې نه يوازي داچې کمه شوي نه ده ، بلکي نوره يې هم پراختيا موندلي ده . د طالبانو د يوې سرچينې په قول : په تېر کال کې يوازي د معادنو – چې ، سنګ مرمر، رخام ، اوسپنيزه ډبره يا کوروم ، د ډبرو سکاره يا کويله او داسې نور... پکي راځي ؛ له لاري نه مجاهدينو ته تقريباً ۲۲۰ ميليونه افغانۍ ترلاسه شوي دي . په داسې حال کې چې طالبان وايي دوی ډېره لږه اندازه د قانوني ماليې په بڼه ځينی اخلي؛ چې په مقابل کې يې د امنيت او نورو اسانتياوو ذمه طالبان پرغاړه اخلي.

دا رنګه له نورو هغو منابعو نه چې مخکي يې نومونه ياد شول ؛ هم ماليات ترلاسه کوي چې دا د طالبانو لپاره خورا غټ عائد په دې وجه بلل کيږي چې يو خو په طالبانو کې فساد او مالي اختلاس نشته او بل دوی د کابل د چارواکو په څير د مرفه ژوند عادت نلري چې ټريليونه ډالر يې له امريکا او ناټو څخه ترلاسه کړل خو هيڅ يو غريب هيوادوال ځينی برخمن نشو . يوازي د کرپټ او مفسدو چارواکو د غرايزو د اشباع لپاره وکارول شول . وبس.

خلاصه دا چې تېر کال د طالبانو لپاره له ننګونو ډک کال ګڼل کيده ، خو دوی ډېر په برياليتوب سره نه يوازي داچې له اټکل شده او يا حقيقي ننګونو څخه ځان خلاص کړ ؛ بلکي نوره يې هم نظامي بريا او سياسي ارتقاء په برخه شوه. چې د کتونکو په اند، ياده بريا يې لاهم مخ پر وده بريښي.

## د فرهنګي يرغل

# دفاع وکړئ



ليکوال مطيع الله زاهد

د مسلمانانو مغلوب کولو لپاره امريکا چې څنګه د بمونو او بارودو بمبارونه کول هم داسې يې د اسلامي عقيدې ، افغاني دود او فرهنګ ، خپل منځي سلوک ،اخلاق او دژوند د اسلامي بڼې له منځه وړلو لپاره دناپوځي وسائلو له لارې مطبوعاتي جګړه شروع کړه تر څو مسلمانان له خپل ځانګړي تشخيص او پيژنګلوي څخه محروم ، او ورځنۍ چارو کې يې دغرب په تقليد داسې روږدي کړي چې راتلونکي کې دکفارو په خلاف دجګړې تصور هم په ذهن کې ونه لري د همدې نا تعبيره خوب ريښتيا کولو لپاره يې

لکونه ډالر د مطبوعاتو ځانګې ته ځانګړې کړل د ويب پاڼو څخه نيولې تر تي وي چينل او د لسهاوو په تعداد کې د ايف ايم راډيوګانې جوړې کړې په داسې سيمو کې يې هم د انټرنيټ اسانتياوې برابرې کړې چې اوسيدونکي يې ژوند تيرولو لپاره د يو ځاځکي اوبو محتاج ول د مطبوعاتو اړوند وسايل او دهغې اسباب يې دومره پريمانه او کم قيمته کړل چې د ټولنې تر ټولو ډير غريب ته يې هم د دې زمينه برابره کړه چې هغه هم په خپل غربي جال کې راګير کړي د ديموکراسۍ په اسلام ضده اصولو يې د تلويزوني نشرياتو لپاره د ځوانۍ په نشه مست څو هلکان او انجونې د ډالرو په نشه هم ليونۍ کړل او د تلويزونو په شيشه يې داسې سريالونه پرې شروع کړل چې د افغانستان په تاريخ کې يې ساری نه ليدل کيږي په همدې موخه يې مکتب او پوهنتون کې هم داسې پورګرامونه ترتيبات شروع کړل چې هلک او جلکۍ ته په ټولو چارو کې د خپل خوښې ژوند او د هر راز ازادۍ ورکولو طريقې ور وښئ د بيلګې په توګه ورمه ورځ مې د کابل پوهنتون يوه ويډيو وليده چې د سټيج پر سر يې د هلکانو او جلکيو ګډه مشاعره ښکاره کوله هلک او جلکۍ يو بل ته د بدلو ځوابونه ورکوي د مشاعرې په يوه برخه کې هلک داسې وائي:

که په سپين ګيرو يې را نکړې
صباء ته يوه ډله تور سرې درلېږمه

جلکۍ ځواب ورکړ:

په پلار مې بله جرګه وکړه
که در يې نه کړم په رضاء در سره ځمه

غربيان او هم فکره ملګري يې غواړي په داسې کړنو سره زمونږ اسلامي ټولنه کې د ناجائزه ياراانو رواج ګرم کړي، د ښځو خپل سرې تښتېدل معمول وګرځوي او د جرمونو هغه خونړۍ دروازه هم خلاصه کړي چې د ټولنې د تباهۍ او د افغانان دې اسلامي روحيې ته په څو ډوله ضربې ورکړي سمبال د کفري ملتونو سيال وګرځي .

د نظامي اجيرانو په څير د يرغل دی برخې ته يې هم څو بې وجدانه جلب کړل ،لوړ معاشونه يې ورته وټاکل ، د ژورنالست په نوم يې د هر قسمه

قوانینو مبرأ کړل او د هغه څه نشرولو دنده یې ور وسپارله چې د افغانانو اسلامی عقیده او افغانی فرهنګ تر سوال لاندی راولی

الهی احکامو باندی ملنډې او د فحشا خپرول یې خو خاص تکتیکی وظایف ول .

ځنګه چې د صلیبی یرغل نظامی مقابلی ته د ګوتو په شمیر څو ځوانانو په خپل رب توکل وکړ او په ډیرو وړو او ناشونی وسائلو یې په وسلوال جهاد لاس پوری کړ خو د قادر ذات په مرسته په ډیره کمه موده کې د فتوحاتو په داسی دنګو منارونو ودریدل چې دښمن هم ورته ګوته په غاښ دی همدا راز د صلیبیانو د فرهنګی یرغل مقابلی ته هم څو داسی ځوانانو ملا وتړله چې نه یې د ټیکنالوژئ کم پوهنتون لوستی وه او نه یې هم کم ځانګړی کورسونه کړی خو په هم هاغو وسایلو یې د صلیبیانو د فرهنګی یرغل دفاع وکړه چې کفارو غوښتل پر مټ یې د مسلمانانو ذهنونه ګډ وډ او فحاشئ سره اموخته کړي په داسی حال کې چې نه هم تر اوسه کمه راډیو لري او نه کم تلویزونی چینل

خو بیا هم د ښمن په دی مجبوریږي چې د نظامی ډګر په څیر فرهنګی ډګر کې هم د ماتی ګونډې خنبی ، او په زغرده اعلان وکړي چې مونږ مطبوعاتی جګړه بایللی ده خو د نظامی ماتی په څیر یی دلته هم څو وفادار ملګری لا هم خپله وظیفه پر مخ وړي د بادار لمن یی نیولی او د خپل ډالری معاش په خاطر په دروغو د بریا راپورونه جوړوي خو ان شاء الله دا وړئ به یی همداسی بی شړئ پاتی شی او د افغانانو د بی لاری کولو ارمانونه به ګور ته له ځانه سره ویسی

که څه هم د مطبوعاتو په جګړئیزه برخه کې دښمن خپله ماتی منلی خاو په دی ونه توانید چې د افغانستان مخکې ده

د خاوری په څیر د افغانانو وجدان او زړونه هم یرغمل کړی خو بیا یی هم د عقیدوی فساد لپاره دومره زهر شیندلی چې جبیره یی د څو افرادو کار نه دی بلکی په هر افغان لازمه ده چې د خپل توان مناسب دی زهرو پاکولو کې ونډه واخلي.

په اسلامی روحیه سمبال او آزاد افغانستان غواړو.

## امریکا په ۲۰۱۶ کال کې په ۷ اسلامي هیوادونو ۲۶ زره بمونه اچولي*

د ملي امنیت او بهرني سیاست په برخه کي امریکایي کارپوه میکازینکو ویلي، امریکا په ۲۰۱۶ کال کي په ۷ هیوادونو ۲۶۱۷۸ بمونه غورځولي دي.

د امریکا دا ټول بمونه د اسلامي هیوادونو په خاوره اورول شوي دي.

د امریکا تر ټولو ډیر ۱۲۱۹۲ بمونه د سوریې په خاوره غورځول شوي، چي په دغو بمونو کي د انقلابیانو په ګډون زرګونه سوري وګړي ټپیان او وژل شوي دي.

د عراق په خاوره تیر کال ۱۲۰۹۵ بمونه اچول شوي او په دریم نمبر کي بیا افغانستان راځي، چي د امریکا له لوري تیر کال۱۳۳۷ بمونه پرې اچول شوي دي.

په افغانستان د امریکا د وحشیانه بریدونو په ترځ کي زرګونه افغانان ټپیان او وژل شوي دي.

په څلورم کتار کي لیبیا راځي، چي ۴۹۶ بمونه پرې اچول شوي، په لیبیا کي د امریکا په ګډون د فرانسې، بریتانیا، ایټالیا او یوشمېر نورو استعماري هیوادونو زرګونه پوځیان میشت دي.

امریکایي اشغالګرو د یمن په خاوره ۴۳ بمونه اچولي، چي تر ډیره یې د انصارالشریعة ډله، د ولسي مقاومت خواکونه او ولسي وګړي په نښه کړي دي.

په سومالیا ۱۲ بمونه اچول شوي او د پاکستان په قبایلي سیمه بیا ۳ بمونه اچول شوي دي.

د یادوني وړ ده، چي امریکا د اسلامي هیوادونو په ضد جګړه کي تر ټولو

# پر افغانستان

## د امریکا د یرغل سطحي ستراتیژي !!؟

(هڅاند)

اصلي خبره هاغسې نه ده، لکه افغانستان کې چې دامریکا دپلي پوځونو مخکیني قوماندان (جنرال ډمپسي ـ) دې وروستیو کې نړیوالو رسنیو ته کړي اوافغانستان کې یې دامریکایي عسکرو دماتي او دافغانستان داسلامي امارت دمجاهدینودبریالیتوب لامل دافغانستان سیاسي وضعیت ته دامریکایي تیورسنانوسطحي کتنه بللې اوویلې یې دي، چې امریکادافغانستان پرضد جګړه ګې جدي نه وه ،ددې جنرال په آند امریکایي جنرالانوافغانستان ته دجګړې پر ځای دسیل اوسیاحت په فکر ستراتیژي جوړوله او دده په ګمان افغانستان ته باید دسیاحت په سترګه نه وی کتل شوی ، جنرال (ډمپسي )وایي : ، چې امریکایي جنرالانو د افغانستان سیاسي وضعیت ته سطحي فکر کاوه او د جګړې پر ځای یې د سیل او سیاحت په فکر پالیسی جوړولې، د هغه په اند امریکا په خپله دغه مبارزه کې جدي نه وه.

د ډمپسي په وینا امریکایان په دې نه پوهېږي، چې څنګه د ناکامۍ ټوله پړه پر افغان لورې وراچوي، خو هلته د جګړې په اړه زموږ پالیسي ـ تر اوسه هم معلومه نه ده.

رسنۍ وایي چې هغه (ډونالډ ټرمپ ) ته په اشارې ویلي، چې «نوی ولسمشر ـ باید له پوځي چارواکو او سلاکارانو وپوښتي، چې طالبان څه ډول له پرمختللو وسلو او توپ او ټانک پرته جګړه پر مخ وړي )

نړیوالو رسنیو لیکلي :چې ډمپسي ـ دا څرګندونې په داسې حال کې کوي، چې ګڼ امریکایي لوړپوړي چارواکي ټینګار کوي، چې د افغانستان جګړه دې «نیمګړې » نه پرېښودل کېږي او دې هېواد ته دې نور امریکایي سرتېري واستول شوي.....

اصلي خبره داده چې امریکایانوپه سر کې پریوه خپلواک افغانستان دحملې غلطي وکړه ،داسې یوه اسلامي هیواد باندې یې یرغل وکړ،چې هغې هیوادکې خلک جنګ ته جهاد اومرګ ته شهادت وایې اودشهادت غوښتنې مرګ پسي ـ آن نورو لیرې هیوادونوته هم ځي ،اوداچې داسې اهل کتاب کافر یې وطن ته راشي اوپرخاوره او دین یې تجاوز وکړي، نو بیا خو ورته هغه دچا خبره په اټېونواومنډو منډو ورځي او هرکلی یې کوي ،دامریکا دیرغل ستراتیژي نه سطحي وه او دسیل او سیاحت په فکر جوړه شوي وه ،داهرڅه سم دم وو ،اودیرغل داسې پلان یې جنرالانو او تیورسنانو جوړ کړی و ،چې له ځان سره یې داروپا او نورې همګټې نړۍ مزید (۴۸) هیوادونه هم اشر کړل او په یوه غوبل یې زموږ پر جنګ ځپلې خاوره ظالمانه حمله وکړه ،خوداچې دلته دایمان اوبارودو ټکر او تصادم راغی اودغرب په لابرتوارونوکې دذوب شوې اوسپنې سره دتوحید دآسماني لښکرودتکبیرونو جګړه پیل شوه، نودلته وه چې دبارودو او اوسپنولوړي ترآسمانه وختل او دایمان په حرارت اوآتش فشان کې ذوب یا ویلې شول .

که نه نو هر چاپه سرکې ددې اتکل سل په سلو کې ناشونی باله ،چې ددې جنګ ځپلي هیوادولس او ددې له نغرې څخه له راپورته شوی اسلامي تحریک

ضـعیف او دوسـلو او پیسـو لـه درکـه کمزوری روحاني قشر۔ دې دودمره لوی خـونړي سـیلاب مخـې تـه دخپلوسرونـو دنذرانو بندۍ واچوي اوددې جنون نیولي خونړی کلیسا دپیروانـو دې مخـې تـه دې دمسجد او مدرسې طالبان او افغـان ولـس دتوري اوخنجر په خوله څواب ورکړي او ددوئ خولــه دې لــه وینـو نــه ډکــه کړي،داسې خبرې او اټکلونـه دتکنـالوژۍ اوصنعت پدې مډرن دور کې دسراب پـه شان هسې خیالونـه ښکاریدل او چا یـې وړاندوینـه نـه شـوه کـولای ، خودوخـت دیوې معجزې په شـان یـې همـدا ناشـونې شونی کړاو دادی نن یې امریکایان دومـره هینښ او وارخطا کـړي، چـې نـه څـان تـه دوړو پوزه جوړه ولای شي او نه دا جنگ گټلای شي .

جنرال ډمپسي اوس داخبره درسنیو لـه لارې دنیـا تـه کـوي، چـې گونـدې امریکایي تیورسنانواو جنرالانو دافغانستان یرغـل یـو سـطحي او بـابیز بالـه اود سیل اوسیاحت په فکر یې ورته ستراتیژي جوړه کړي او هم امریکایان دافغانسـتان جگـړې کې جدیت نه ښیي، دده پـه آنـد نـو اوس دې نوی ولسمشر(ډونالډ ټرمپ) نـوره هـم پسې سخته کـړي او نـورې پـوځې دسـتې دې ورولیږي ، طالبان چې بي توپـه اوبې ټانگه ددومره گڼ هیوادیز یرغل په جگـړه کې پرمختگ کوي ،نو امریکایـان چـې دا هر څه لري، نو بایدچې هرو مرو دا جگـړه وگټي ...

خـو دا جـنرال شـاید دافغانسـتان لـه مـاضي او تیـر تـاریخ نـه نـا خـبره وي او دپیرنگیانواو روسانوماتي یـې هـم لـه چانـه نده اوریدلې ،دلته تـل دایـمان او عقیـدي په زورجگړه گټل شوي اودهمدې گروهي پر اساس تحریکونه رهبري شـوي ،داسـې ولسي او اسلامي تحریکونه ، نه توپ مات کړي او نه ټانگ ! بلکـې دوئ ورتـه مـاتې ورکړي او ترننه پورې د وخت یرغلگروپـه ټنډه دتـاریخي مـاتي تـورې لیکـل شـوي دي ،دجنرال ډمپسي۔نـه دشـوروي اتحـاد دسرولښکرو دقوماندان (جـنرال گرومـوف )هغه تاریخي وینا هم هیره شوي، چې کله په (۱۳٦۷ل )کال د دلوې په (۲۸)تمه نیتـه دروسي لښکرې وروستی کتارشوبلې لـه افغانستانه ووتلې او داپـه وروسـتي ټانـک سـپور دحیرتـان بنـدر هغـې غـاړې تـه ودریداو زمونږ گران هیواد ته یې ورکتل او ویې ویل((چې خپلو راتلونکیونسلونو تـه توصـیه کـوم ،چـې پـر افغانسـتان تیـری دکـرملین دچـارواکیو سـتره اشـتباه وه او دوئ بایـد داسـې اشـتباه بیـا تکـرار نـه کـړي...)) ،اونـړدي ۸۷کالـه مخکـې دانگریزانــو درې یرغلونــه او دروحــاني قشرپه مشرۍ یې پرله پسې ماتې ،کابل کې له مسلمان قهرمان (ایوب خـان ) پـه لاس ددوئ دسفیر (مکنـاټن )وژنـه او د (ډاگـتر برایـډن) دشکسـت او ویـرې تـاریخې خاطرې، دا ټول هغه څه دي ،چې جـنرال ډمسپي ته ددې لارښوونه کـوي، چـې کـه دوئ بیـا هـم دې خـاوره بانـدې یرغـل وکـړي، بیـا بـه هـم دخپلـو مشـرانواونورو متجاوزینو په شـان مـاتې خـوري او کومـه گټه به ترلاسه نه کړي.

جنرال ډمپسي به شـاید ددې نـه هـم ضرور خبر وي، چې امریکایانو که دیـوې خوا زمونږ پر خـاوره او وطـن یرغـل کـړی ،نو دبلې خوا یـې دافغـان مسـلمان قـام پـه کلتور ،دیـن اومـلي عنعنـاتوهم وخـت پـر وخت یرغلونه کړي ،کله پخپله او کله یـې نورې افغان نما ډلې او دمدني ټولنو په نوم لاسـپوڅي دلگـۍ لمسـولې ،ترڅومـودین ،کلتور او تهذیب په یوه اوبل نامـه تـوهین کـړي، چـې ددې مسـایلو حساسـیتونو او روحیي ډیری ولسونه ارام ته نـدي پریښـې او ددې سـفاکو یرغلگـرو مقـابلې تـه یـې هڅـــولې دي، داســې دینـــي او مـــلي حساسیتونه راپارول ددوئ دستراتیژۍ هغـه فکتور دی، چـې دوئ یـې پـه پـار( یـونیم تریلیـون) ډالـر مصرـف کـړي او دایـې دفکـــري یرغـــل دعمـــده اهـــدافو نـــه محسوبیږي .

امریکایانوکـه لـه هـرې زاویـې نـه دافغانستان دیني او ملي جغرافیې ته کتلې وي ،دلویو اشتباهاتوپه ارتکاب سره یې دا د(سرو زرو مرغۍ) له لاسه وتلې ده او نور ددې وخت دی ،چې عام امریکایان هـم باید دخپل ولسمشر (بارک اوباما) په شـان دطالبانو په وړاندې خپله ماتې تسلیم کړي او نور دنوې پوځي دستو دراليږلو پر ځـای ددې هیوادخلـک پریـږدي چـې خپـل برخلیـک پخپلـه وټـاکي او پخپلـو ټپونـو ملهم کیږدي !

# هلتـه سـوله،

## دلته د (۲٦۰۰۰) زرو بمونو ډالۍ!!



(بت شکن)

په ننني نړۍ کې د نورو هېوادونو په شان دامریکا مادي ځواک او ښکیلاکګر هیواد دوه مخی سیاست خپل کړی او دخپلې تګلارې په اصولو کې یې نړیوال او مخصوصاً له اسلامي نړۍ سره دیو بام دوه هوا پالیسي په لاره اچولې ،دیوې خوا دمیډیا په څیرو کې نړیوالو ته وایې ،چې امریکایان ولسونو ته سوله او امنیت راوړي او په دې لاره کې یې بې ساري لګښتونه کړي او ډیرې چارې یې سرته رسولې، خو دبلې خوا بیا پر اسلامي هیوادونو زرګونه بمونه له آسمانه وروي او دماشومانو ،ښځواو بې ګناه سپین ږیرو په ګډون لکونه انسانان دبارود په لوخړو کې لولپه کوي .

که دشمالي اوجنوبي کوریا خبره راشي، نو پېښتنا ګون دجنوبي کوریا په ننګه شمالي کوریا ته یوازې لفظي ګواښونه کوي او ویروي یې ، که افریقا کې دجنوبي او شمالي سوډان دعیسویت او مسلمان تو کم دتوپیر غږ جګ شي ،نوامریکایان یې تجزیې ته ورودانګي او دعیسویانو ملاتړ له (عمرالبشیر)نه په نړیواله کچه وکړي او نړیوالې محکمې ته یې دراکشولو ستونې وچ کړي ،که په ختیځه اروپا کې داوکراین او روسیې ناندرۍ وي ،نو بیا دډیپلوماسۍ په ژبه له اوکراین حمایت کوي او ددې نه مخکې ډیر غټ پوځي حرکت نه کوي ، تش روسان مصروف وساتي ،که دبیت المقدس او فلسطین له غاصبینو یهودیانو پر ظلم ژنیو کې دبحث اودفلسطینیانوله وینو او حقوقوددفاع خبره څوک راپورته کړي او خبره دې ورسیږي، چې هلته داسرائیلو دظلمونو دمخنیوي لپاره نړیوال سوله ساتې پوځونه ولیږل شي ،نوهم امریکایان یې په وړاندې ودریږي او دویټو له لارې یې پیکه کړي ،برما کې مسلمانان دبودایانو لخوا په کړایي کې سوځول کیږي، په ډله ایزه بڼه یې نسل کشي کیږي ،نوامریکایان خوله باندې ځړه شړۍ راکش کړي او دچوپتیا له ویټو کار واخلي ،خو که دافغانستان، عراق، لیبیا ،سوریا، صومالیا، یمن یا بل کوم اسلامي هیوادخبره راشي او هلته کوم اسلامي تحریک واک ته ورسي او اسلامي شریعت نافذ کړي یا ځایي حکومتونه دامریکا پرضد له خپلې خاورې او هیواددآزادۍ بیرغونه جګ کړي یا دې هیوادونو کې دخپلو ظالمو واکمنو پرضد مشروع بغاوتونه سر راپورته کړي، نو بیا امریکایان نه یوازې ځانته داچې پخپله پرې دبمونوباران جوړ کړي ،بلکې داروپايي

کلیساوو مؤتلف هیوادونه هم ورته راپورته کړي او هلته یوځي یرغل پیل کړي ،حکومتونه یې نسکور کړي ،هیوادونه یې وران ویجاړ کړي او دیموکراسۍ په نامه وربانديې یوسیکولر یا بې دینه نظام مسلط کړي ،که څوک یې نه مني ،نو له هوانه به پرې دبمونوبارونونه جوړوي او دوینو رودونه به پکې روان وي .

نړیوالورسنیو د »کونستل آف فارین ریلیشن« په استناد لیکلي: چې د ولسمشر باراک اوباما په مشرۍ امریکا تېر کال ۲۰۱۶ کې د نړۍ پر اوو هیوادونو باندې ټول «۲۶۱۷۱» بمونه غورځولي چې له امله به یې په زرګونو کسانو ته مرګ ژوبله اوښتې وي خو کره شمېره یې څرګنده نه ده.

دا شمېره د کال ۲۰۱۵ او د هغه تر مخه کلونونه کمه بلل شوې ، ځکه چې هغه مهال لیبیا ، یمن او پاکستان کې هم زیاتې بمبارۍ کېدلې او امریکایان هم په زیاته کچه په افغانستان کې په عملیاتو بوخت وو.

دغه شمېرې له هغو معلوماتو څخه اخیستل شوې ،چې د امریکا حکومت د رسنیو په واک کې ورکړي دي او د امریکا دمذکورې تحقیقاتي ادارې وربانديې څېړنه کړې .

رسنیو د (کونستل آف فارین ریلیشن» څېړنیزي او پالیسي سازي ادارې له څېړنو نه وروسته لیکلي : چې امریکا په تېر کال کې تر ټولو زیاته بمباري پر سوریه او بیا پر عراق کړې، ځکه چې په دغه موده کې پر سوریه (۱۲۱۹۲) او پر عراق (۱۲۰۹۵) بمونه غورځول شوي دي.

تېر کال ۲۰۱۶ کې امریکا په افغانستان کې ټول ۱۳۳۷ بمونه غورځولي، پر لیبیا یې ۴۹۶، یمن ۳۴، صومالیه ۱۴ او یوازې درې بمونه یې پر پاکستان غورځولي دي.

باید وویل شي چې یادې شمېرې یوازې د امریکایي ځواکونو د بمباریو دي، د هغو بمباریو نه دي چې د امریکا سره ایتلافي ځواکونو په سوریه او عراق کې کړي دي او یا هم په افغانستان کې د ناټو ځواکونو تر سره کړي دي.

د یادونې وړ ده، چې تېر کال په کندز، روزګان، پکتیکا او جلال اباد کې په لسګونو عام وګړي د امریکایانو په بمباریو کې شهیدان شول چې هغه وخت امریکایانو اعتراف هم باندې وکړ او د نورو پلټنو خبر یې ورکړی وو، خو بیا یې هیڅ درک ونه لګېد او نه هم حکومت د پلټنې ژمنې په سې تعقیب کړې.

په ننګرهار، کندز او نورو ولایتونو کې حکومتي چارواکي تل د ملکي تلفاتو په پېښه کې د امریکایانو تر مخه اعلان کوي چې په بمباریو کې په لسګونو طالبان یا داعش ووژل شول خو وروسته څرګندېږي چې په اکثرو بمباریو کې عام وګړي له منځه تللي وي.

ددې نه ښکارې ،چې امریکا یان نړۍ ته سوله او امنیت نه راوړي ،بلکې دسولې او امنیت دله منځه وړلو لپاره ګړندی هڅې کوي ،دنړۍ امنیت خرابوي او سوکاله ولسونه دویر په ټغربانديې کېنوي ،نن ددې میدان فاتحان امریکایان دي، خو پرون انګریزان ،فرانسویان ،روسان او نور ښکیلاکي هیوادونه وو، چې دادی نن یې یو شمېر دنشت په خوب ویده دي او د تاریخ بابونه ګرځېدلې دي ،که نه کوم یو هیوادچې دنړیوالو سولې او امنیت لپاره کار کوي، نو بیا یوازې په یو کال کې په انسانانو «۲۶۱۷۱» زره بمونه ورول د کوم استبداد او ظلم نه استازیتوب کوي او د کوم ویښ ضمیرخاوند به یې ددومره زیان پېښونکې بمونوننداره دامنیت له دعوی سره مرادفه وبولي، بلکې هر څوک پدې پوهیږي، چې امریکایان نه دسولې پلویان دي او دنړۍ مسلمانانو ته دسولې کومه پیغام لري ،هغوئ چې پنځلس کاله مخکې د(بوش) په خوله یوازې دافغانستان یرغل ته د صلیبي جګړو د تسلسل نوم ورکړ،نو هلته معلومه شوه، چې ددوئ ارادې هغه نه دي کومې چې دخلکو لپاره اعلانوي !

# آیا سزایی نان دادن همین میباشد!

نویسنده : قاضی عبید

افغانها مردمان غیور و مهمان نواز هستند ، این صفت را نه اینکه خود افغان ها به خود اختصاص داده بلکه تاریخ گواه آن میباشد.

ولی امروزه در کشور ما دادن نان و مهمان نوازی جرم بزرگ پنداشته شده و سزایی آن قتل میباشد ، که به همین دلیل انجنیر سید رحمن محصل پوهنتون کابل در ولایت غزنی ولسوالی قره باغ به شکل بی رحمانه آن به شهادت رسید ، چرا که پدر سید رحمن به نام عبدالرحمن با حس دینی و اسلامی که دارد طالبان را بعضی اوقات طعام میداد ، که بلاخره نان دادن عبدالرحمن برای طالبان باعث گردید تا فرزند تحصیل یافته خود را که به تکالیف و مشکلات زیاد آنرا تا پوهنتون برای ادامه تحصیلش رسانده بود از دست دهد.

شهادت سید رحمن زمان به وقوع پیوست که وی پس از سپری نمودن امتحانات سمستری و استفاده از رخصتی های زمستانی پوهنتون کابل به سوی قریه خود در حرکت بود تا باشد چند وقتی را در کنار خانواده و والدین خود بگذراند ، نامبرده در نزدیکی ولسوالی قره باغ توسط عساکر اداره اجیر از موتر پایین گردیده و پس از مدت تقریبا یک هفته در حال بشهادت رسید که آثار شکنجه و ظلم در صورت اش نمایان بود.

سید رحمن را بخاطر در نزدیکی ولسوالی از موتر پایین و به دلیل نان دادن پدرش به شهادت رسانیدند که ساحه وی تحت کنترول طالبان بوده و عساکر ترسو و بزدل به آنجا رفته نمیتوانند.

این اولین ظلم نظامیان تفنگ به دست حکومت اجیر نبوده و آخرین آن هم نمیباشد ، در سراسر کشور ،قریه جات ، ولسوالی ها و ولایات مردم از وحشت ،ظلم ،بربریت ، چور و چپاول اربکی ها ، پولیس و قومندانان محلی اداره دست نشانده کابل به فغان آمده و فریاد میزنند.

در این این اواخر اخباری از گوشه گوشه افغانستان شنیده میشود که افراد مسلحه محلی به ناموس مردم تجاوز نموده حتی دو خواهر را در یک شب به زور تفنگ به نکاح خود در میآورد، فرزندان نابالغ را برای سوء استفاده باخود برده کسی مانع شان شده نمیتوانند ، پول های جیب اشخاص را در روز روشن در ملا عام گرفته و مشغول سرقت و دزدی اموال مردم میباشند ، بلاخره هر آن چیزی که دل شان بخواهد بالای این ملت بیچاره و رنج کشیده انجام میدهند، چون کسی نیست تا صدایی مظلومان را شنیده و اقدام نماید ، حکومت مرکزی این نظام آلوده به فساد غرق در عیاشی ، رشوت ، خیانت و جنایت میباشد.

پس زمانیکه آب از سرچشمه آن آلوده باشد و مرد شماره دوم نظام خودش به فساد اخلاقی آغشته بوده و دوسیه آن به سطحه منطقه و جهان رسوا و نیز سازمانهایی مختلف جهانی خواستار محاکمه آن شود چه توقع از چنین حکومت و نظام باید داشت.

یک نکته را باید یادآور شد آن اینکه چرا مهر سکوت بر دهان رسانه ها زده شده ؟ آیا آزادی بیان همین میباشد ؟ چرا فیسبوک یان که نشرات ۲۴ ساعته دارند و رسانه های به ظاهر آزاد و مستقل از ظلم و بربریت این حکومت تحمیلی چیزی بنشر نمی رسانند و برعکس پرده پوشی می نمایند.

اگر یک محصل و یا هم یک فرد عادی به علت ارتکاب جرمی با شواهد و اعترافات مجرم و فیصله شرعی محکمه از سوی طالبان لا اقل چند دره زده شود تمام رسانه ها و روزنامه ها آنرا به سطحه منطقه بازتاب داده و طالبان را ناقضین حقوق بشر میدانند.

آیا همین است حقوق بشر که یک محصل بیگناه را بعد از یک هفته شکنجه به شهادت برسان ؟



# د جنوبي ولاياتو د حلقي له مسؤل

## مولوي رحيم الله صاحب سره مرکه

مرکه کوونکی: أبوعابد

**یادونه :**

**نظامي کمیسیون د افغانستان د اسلامي امارت په تشکیلاتو کې هغه تر ټولو پراخ او مهم اداري واحد دی چې د یرغلگرو کفارو او د هغوی د طرفدارانو په خلاف د مسلح جهاد د پلان گذارۍ،څارنې،اکمال او پرمخ بیولو مسؤلیت په غاړه لري. د افغانستان په ۳۴ ولایاتو کې جهادي مسؤلین/والیان ، ولسوالان، ولایتي او د ولسوالیو کمیسیونونه او گڼ نور تشکیلات د نظامي کمیسیون تر مشرۍ لاندې فعالیت کوي. د نظامي کمیسیون یو مهم اداري تشکیل د زونونو په سطحه د حلقو دی چې د څو ولایاتو جهادي چارې د حلقې په نوم د نظامي کمیسیون د ځانگړي هیئت لخوا رهبري کیږي. د مرکو په لړۍ کې مو دا ځل د هلمند،کندهار، روزگان او دایکندي ولایاتو لپاره د نظامي کمیسیون د حلقې له مسؤل مولوي رحیم الله صاحب سره مرکه کړې چې ستاسو توجه ورته راگرځوو.**

**پوښتنه**

محترم مولوي صاحب! تاسو ته هرکلی وایو که له هرڅه وړاندې زموږ لوستونکو ته خپل لنډ تعارف وړاندې کړئ د ځای او په امارت کې د وظایفو په اړه معلومات راسره شریک کړئ؟

**ځواب**

نحمده و نصلی علی رسوله الکریم امابعد! له هرڅه مخکې تاسو او لوستونکو ته السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته وړاندې کوم. زما نوم مولوي رحیم الله د غزني ولایت د ناوې ولسوالۍ اوسیدونکی یم تر دې وړاندې مې د اسلامي امارت په جهادي صف کې د غزني لایت د مرستیال او بیا د اسلامي امارت د نظامی کمیسیون د غړي په حیث وظیفه ترسره کړې له تیر څه باندې یوه کال راهیسې د کندهار، هلمند،روزگان او دایکندي ولایاتو لپاره د نظامي کمیسیون د حلقې مسؤلیت په غاړه لرم.

**پوښتنه**

د نظامي کمیسیون حلقې اصولا کوم مسؤلیت او په کومو برخو کې جهادي فعالیت لري؟

**ځواب**

ددې لپاره چې نظامي کمیسیون ټولو ولایاتو ته رسیدگي او پوره توجه وکړای شي نو د کارونو د معلوموالي لپاره د کمیسیونو اعضاوو ته د مشخصو ولایاتو مسؤلیت ورسپارل شوی یعني د کمیسیون څو تنه اعضاء د جنوبي ولایاتو او څو تنه نور د مغرب یا شمالي ولایاتو د جهادي کارونو د څارنې مسؤلیت لري. د نظامي کمیسیون د اعضاوو همدغه ټولگي ته حلقه وایي چې یو مسؤل لري او د نظامي کمیسیون د مشر او مرستیال تر مشرۍ لاندې فعالیت لري.

د نظامي کمیسیون د حلقو د کارونو په اړه به په خلاصه ډول ووایو

چې په نظـامي برخــه کـې لــه واليـانو، ولسوالانو او په ولاياتو کې له مجاهــدينو سره جهادي پلانونه شريکـول،د ولايــاتو تــر مــنځ هماهنگــي رامنځتــه کــول،د مجاهدينو د خپل منځي مشکلاتو حـل او فصل،په ولاياتو کـې د نظـامي او ملکـي چــارو لــه نــږدې څارنــه او د هغــوی مشکلات تر مشرتابه رسول،له مجاهدينو سره د اکمال، پلان جوړولواو عملي کولــو په برخه کې همکاري او په ټوله کـې پــه ولاياتو کې د جهــادي چــارو لــه نــږدې رهبري، مرسته اود وضعيت جاج اخيستل او د نظامي کميسيون لــه مشرـتابه سره شريکول د حلقو مسؤليت دی. حلقه چې د نظامي کميسيون له اعضــاوو تشــکيل شوې، په جهادي سيمو کې وجــود يــې د مختلفو سيمو او ولاياتو د مجاهدينو تــر منځ په هماهنگۍ او خپل منځــي مرســته کې ډيره همکاري کړې، د مجاهــدينو يــا اولس کوم مشکلات چې د والي يا ولايتي کميسيون لخوا نه وي حل شوي نو حلقې ته راجع کيږي همدا شان د حلقې اعضــاء ډير وخت په جهادي سيمو کــې موجــود وي او د عملياتو پــه مهــال د مجاهــدينو سره هر راز همکارۍ ته امادگي لري.

**پوښتنه**

محترم مولوي صاحب! که د عمــري عملياتو پــه بهيــر کــې ستاســو د کــاري ساحې يعني کندهار، هلمنــد، روزگــان او دايکندي ولاياتو د جهادي وضعيت په اړه معلومات راکړئ چې په دې ولايــاتو کــې مجاهدينو کومې لاسته راوړنې درلودې؟

**ځواب**

تاسو ته بهــتره معلومــه ده چــې د عمري عملياتو په لړ کې د هيواد په ټولــو ســيمو کــې لله الحمــد مجاهــدينو ښــه فتوحات او لاسته راوړنې درلودلې. ډيرې ولسوالۍ فتحه شوې،ددښمن د واک لمــن ورټوله شوه، مجاهدينو په مهمو ســاحو، لويه لارو او ددښمن په مراکــزو کنــترول تر لاسه کړ ددښــمن واکمنــي پــه ډيــرو ولايــاتو کــې تــر ولايتــي مراکــزو او د ولسواليو تر مرکزونو ور ټوله شوه. چــې په دې بهير کــې د فتوحــاتو يــوه مهمــه ساحه زموږ کاري ساحه يعني د کندهار، هلمند، روزگان او دايکندي ولايات وو.

دلتــه کــه دد ې ولايــاتو پــه ټــول جهــادي وضــعيت، لاســته راوړنــو او فتوحاتو بحث کوم نو شايد خبره به ډيــر اوږده شي نو ځکه هڅــه کــوم چــې پــه مختصره توگــه پــه همــدې ولايــاتو کــې ترلاسه شويو برياوو ته کتنه وکړم.

که لومړی د کندهار ولايت جهــادي وضعيت ته اشاره وکــړو، دغــه ولايــت د افغانستان په جنوب کــې مرکــزي او تــر ټولو مهم موقعيت لري ځکــه ددښــمن د جنگ د قومنــدې مرکــز همدلتــه دی لــه همدې ځايه يرغلگر او ملگري يې په ټولو همجوارو ولاياتو کې جگړه رهبري کــوي لــه همــدې املــه پــه کــې خارجيــانو او داخليانو ډير قوت هم راټول کــړی دی او ساتنې ته يې ډير متوجه دي.

خو ســږ کــال پــه دې ولايــت کــې مجاهدينو مهمې لاسته راوړنې درلــودې، د مثال په ډول له کندهار ښخه د روزگان په خوا غځيدلی پوخ سرک مجاهدينو تــر خپل کنترول لانــدې راوســت مجاهــدينو ددې مهمې لارې په امتداد کــې ددښــمن ۲۸ پوستې فتحه کړې چې لــه املــه يــې دغه پخه لاره او ورځيرمه سيمه د دښــمن له واکه ووته.

په شاوليکوټ او ميونــد ولســواليو کې د مجاهدينو په مکررو بريــدونو کــې سږکال دښمن تــه دومــره ځــاني تلفــات رسيدلي چې پخوا يې بيلگه نــه ده ليــدل شوې،د مجاهدينو د دقيقي احصــايې لــه مخې يوازې په ميوند کې سږکال ددښمن تر ۵۰۰ زيات پوځي کسان وژل شوي او گڼ نور ټپيان شوي دي مجاهدينو بيا بيا ددوی په پوستو او مراکــزو تهــاجمي او نفوذي بريدونه وکړل او دښمن ته يې هر ځل د سر درانــه تلفــات واړول د همــدې تلفاتو له امله اوس دښمن پــه دې ســيمو کې د جنگي افرادو لــه کمښــت سره مــخ دی نو ځکه يې ونکړای شول چــې خپــل پلان شوي عمليات ترسره کړي.

د کندهار ولايــت د نــېش ولســوالي چې په تيرو پنځلس کلونو کې دښمن پــه کې ځواکمن حضور درلود او ټولې سيمې يې ددښمن تر واک لانــدې وې ســږ کــال مجاهدينو وکړای شول ددې ولسوالۍ پــه

اکثرو سیمو واک ترلاسه کړي او ددښمن د واک ساحه د ولسوالۍ تر مرکز پورې محدوده کړي.دغه راز د غورک پراخه ولسوالي په بشپړه توګه د مجاهدینو په لاس فتحه شوه چې دښمن ته په کې درانه ځاني تلفات هم ورسیدل او مجاهدینو ډېر غنیمتونه هم ونیول. په دې سربیره په تیر کال کې په کندهار ښار کې چریکي عملیات هم د پخوا په پرتله زیات شوي دي په مختلفو ولسوالیو کې په دښمن باندې بریدونه او چاودنې ترسره شوي د کندهار په جنوب کې د ریګستان ولسوالي د پخوا په شان د مجاهدینو په لاس کې ده او ښوراوک د محاصرې په حالت کې قرار لري دغه راز په ختیځو ولسوالیو لکه معروف او ارغستان کې هم د پام وړ کارونه ترسره شوي دي .

**پوښتنه**

د کندهار غونډې که د روزګان او هلمند ولایاتو د جهادي اوضاع په اړه هم معلومات راسره شریک کړئ؟

**ځواب**

د عمري عملیاتو په لړ کې په روزګان ولایت کې هم مجاهدینو د پام وړ فتوحات درلودل. پخوا د روزګان ولایت د مرکز ترین کوت په مربوطاتو کې مجاهدینو کومه سیمه په واک کې نه درلوده، مګر د عمري عملیاتو په لړ کې د ترین کوټ له ښار پرته د مرکز ټول مربوطات مجاهدینو فتحه کړل مجاهدین



د شرق خواته د ګرماو او مراباد، شمال خواته د درویشان او غرب خواته د پایناوې له خوا د ښار تر دروازو ورسیدل او دغه پراخې اولس میشتې سیمې یې د الله تعالی په مرسته فتحه کړې، د عمري عملیاتو په بهیر کې په روزګان کې مجاهدینو تر ۱۰۰ زیاتې پوستې او ۱۵ زیاتې قرارګاوې نیولي دي په مرکز ترین کوټ کې مجاهدینو ډېر غنائم هم له دښمن څخه نیولي دی د نیول شوو رینجرو او شوبلو مجموعي شمیر له ۷۰ زیات دی ۱۰ غټ موټر ۷۰۰ میله مختلف النوع وسلې چې تر زیکویک او دهشکو پورې وسلې هم په کې شته دغه راز نور ډېر وسایل او اسباب مجاهدینو له دښمن څخه ولجه کړي دي.

دعمري عملیاتو په لړ کې د چورې په ولسوالۍ کې ۲۰ پوستې او پنځه قرارګاوې فتحه شوې اوس ددې ولسوالۍ یوازې مرکز له دشمن سره پاته دی د دهراوود ولسوالۍ ته غزیدلي لار چې د کوتل مورچې له سیمې تیره شوه د مجاهدینو تر کنترول لاندې راغله همدا اوس د روزګان وضعیت داسې دی چې ټولې ولسوالۍ یې لکه دهراوود، خاص روزګان، چینارتو، چوره او چارچینې په کامله توګه محاصره دي دښمن ورته زمیني لار نلري اود هوا له لارې یې اکمالات کوي.

همدغه راز د هلمند ولایت یو له هغو سیمو دی چې د سږکال په جریان کې په کې د هیواد په سطحه بې ساري فتوحات وشول د تیر کال په شان سږنی کال هم په هلمند کې د الله تعالی د نصرت او فتوحاتو کال و مجاهدینو د خانشین او ناوې ولسوالۍ مکملې فتحه کړې، د ګرمسیر ولسوالي چې پخوا په کې مجاهدینو یوازې چریکي فعالیت کولای شوای سږکال مجاهدین د الله تعالی په فضل او نصرت سره وتوانیدل چې ټولې اطرافي ساحات یې د دشمن له شتون څخه تصفیه کړي حتی یو ځل مجاهدین د ګرمسیر مرکز ته هم ورداخل شول مګر اوس د ګرمسیر مرکز د دښمن په لاس کې

دی او نور ساحات له مجاهدینو سره دي، همدغه شان د نادعلي، باباجي او د لښکرگاه په مربوطاتو کې چاه انجیر او نورو ډیرو سیمو اکثریت ساحې مجاهدینو فتحه کړې مجاهدینو د دښمن د اربکیانو او نورو امنیتي پوستو ټغر ورټول کړ او د امریکایانو د ملیشو جوړولو د کلونو خوارۍ یې په اوبو لاهو کړې.

په دې سربیره د گرشک ، مارجې اوسنگین په مربوطاتو کې هم مجاهدینو د پام وړ کارونه کړي ددښمن گڼې پوستې یې له منځه وړې او بیا بیا یې درانه زیانونه ور اړولي دي.
په تیر کال کې د مجاهدینو بل ستر پرمختگ د کندهار او لښکرگاه په لویه لاره کنترول راوستل و مجاهدینو تیر کال دغه لار دوه ځله بنده کړې ده او اوس هم که وغواړي هر وخت یې بندولی شي. په هلمند کې دښمن سخت ځپل شوی دی او د اربکیانو او په ټولو ساحو کې د قوتونو د ځای په ځای کولو د څو کلونو پروگرامونه یې له ناکامۍ سره مخ شوي دي.

د تیرکال په جریان کې په هلمندکې د مجاهدینو یوه بله مهمه لاسته راوړنه د دشمن د هغو دسیسو کشف او په خپل وخت خنثی کول و چې د جبار قهرمان لخوا طرح کیدلې او غوښتل یې د یو شمیر باغیانو له عنوان نه په استفاده د مجاهدینو په خلاف جنگیالي راپورته کړي مگر د الله تعالی په فضل د هلمند ولایت مسؤل مجاهدین وتوانیدل چې دغه ډول دسیسې کشف او مخکې له عملي کیدو یې خنثی کړي چې په دې ډول ددښمن دغه وروستۍ حربه هم ناکامه وختله.

د دایکندي ولایت په بعضې سیمو کې هم تیر کال د پام وړ جهادي فعالیتونه ترسره شول له دې جملې د گیزاب په ولسوالۍ کې مجاهدینو د ۲۰ په شاوخوا کې پوستې له دشمن څخه



ونیولې او د ولسوالۍ تر مرکز پورې یې پرمختگ وکړ په دې عملیاتو کې مجاهدینو ۸۰ میله وسله هم له دښمن څخه غنیمت ونیوله. دغه راز د اجرستان په ولسوالۍ کې هم بیا بیا په دشمن بریدونه ترسره شول او ځیني سیمې ترې تصفیه شوې. په ټوله کې په یادو ولایاتو کې تیر کال د ښو فتوحاتو شاهد و له مجاهدینو سره د الله تعالی نصرت ملگری و . و لله الحمد.

**پوښتنه**

په یادو ولایاتو کې له دښمن څخه نیول شوې پوستې، مراکز او سیمې آیا ټولې په جنگ نیول شوي که په ځینو ساحاتو کې حکومتي عسکر تسلیم شوي هم دي؟

**ځواب**

په پیل کې خو ډیری سیمې د نظامي عملیاتو په توسط ونیول شوې خو وروسته ددښمن عسکر په دې پوه شول چې د تسلیمۍ لاره ورته ښه ده نو ځکه بیا په ډلو ډلو تسلیم شول. په تیر کال کې د مجاهدینو دا هم یوه غټه لاسته راوړنه وه چې ددشمن جنگي اراده یې وځپله او د هغوی له تسلیم شویو عسکرو سره د ښه چلند په مټ یې نور عسکر هم تسلیمۍ ته وهڅول چې دا یوه ډیره مهمه بریا وه چې ددشمن په صفوفو کې یې تزلزل گډ کړ تردې چې ددشمن مکملې قرارگاوې تسلیم شوې، له تسلیم شویو کسانو سره مجاهدینو د خپلو اصولو له مخې ډیر ښه چلند وکړ له هغوی سره په احترامانه چلند سربیره یې تسلیم شوي کسان خوشي کړل حتی هغوی ته یې جیب خرڅ او سفریې ورکړې او تر خپلو کورونو یې په امن ورسول. چې د مجاهدینو دې عمل ښه



اثر درلودلی دی همدا اوس ډیر عسکر له مجاهـدینو سره تماسـونه نیسي ــ او د تسلیمۍ وعدې ورکوي دوی وایي چې که تر موږ پورې جنګ راورسیږي موږ جنګ نه کوو بلکې تسلیمي غوره بولو.

**پوښتنه**

په مفتوحـه سـیمو کـې وضـعیت څرنګـه دی یعنـي مجاهـدینو د خلکـو حقوق تأمین کړي دي؟

**ځواب**

په ټولو مفتوحه سیمو کـې امنیـت چې د خلکو لومړۍ اړتیـا ده پـه احسـنه طریقه موجود دی، د خلکو سر ، مـال او حیثیت په امـن دی، د غـلا، قتـل او داړه مارۍ کومې پیښې نه دي لیدل شـوي. د ولس د مشکلاتو د حل لپاره ملکي ادارات فعال دي په ټولو سیمو کې محـاکم هـم فعالیت لري که خلک کومه ستونزه لـري ملکي ولسوال یا محکمې تـه یـې راجـع کوي. عام مجاهدین له اولس سره هـیڅ کارنلري او خلک په ټوله کې د مجاهدینو له حاکمیته راضي دي.

**پوښتنه**

په دې وروسـتیو کـې امریکایانو اعلان کړی چـې هلمند ولایت ته به د ۳۰۰ په شاوخوا کې تازه دم پوځیان راولي، ستاسـو پـه بـاور ددوی د دغسې اقـدام لامـل څـه کیـدای شي او آیـا پـه وضعیت به کوم تاثیر ولري که نه؟

**ځواب**

په هلمند کې تیـر کـال مجاهـدینو خورا ډیـرې لاسـته راوړنـې درلـودې او دښمن ته یـې سـخت تلفـات او زیانونـه واړول دښمن پوهیږي چې راتلونکی کـال شاید مجاهدین نور هم خپلو بریدونو تـه زور ورکړي امریکایان چې په هلمند کـې یي پخوا لسـګونه زره عسـکرو یـو ځـل ماتې خوړلې اوس هڅـه کـوي ددغسـې اقداماتو په کولو سره داخلي عسکرو تـه مورال ورکړي او داسې ورته وښیي چـې موږ درسره ولاړ یو. له همدې املـه دوی دغه اقدامات ډیر زیات تبلیغوي او بیا بیا یي یادونه کوي.

زما په نظر کـه لـه مـوږ سره د الله تعـالی نصرـت موجـود وي دښـمن بـه هیڅکله ونه توانیږي د جهـادي بریـاوو مخه ونیسي. امریکایانو پخـوا هلمنـد او نـورو سـیمو تـه لسـګونه زره عسـکر راوستي وو دوی ونه توانیـدل د هماغـو ډیرو عسکرو پـه وجـود کـې د جهـادي خوځښـت مخـه ونیسيـ نـو اوس ددې محدودو عسکرو په توسط فکر نه کیـږي چې په وضعیت کـې بـه کـوم د پـام وړ تغیر راولي.

**پوښتنه**

او محترم مولوي صاحب که په پای کې څه پیغام لرئ تر څو یي د مجلې لـه لارې تر لوستونکو ورسوو!

**ځواب**

پیغـام مـې ټولـو مسـلمانانو او خصوصا مجاهدینو ته دا دی چـې خپـل منځي اتحاد او اتفاق ته ډیره توجه ولري په جهاد کې اتفاق د بریـالیتوب اسـاسي شرط دی او اتحادپه دې سره راځي چـې ټول په یوه صف کې خـدمت وکـړي او د یوه امیر اطاعت وکړي.

او بل دا چې له عام اولس سره ښـه چلند باید وکړي ځکه زمـوږ اولـس ټـول متدین او مؤمن اولس دی په جهاد کې یي ډیرې قربانۍ ورکړي دي، همدا د اولـس همکاري ده چې مجاهدینو ته تر خوراک، اکمالاتو پورې ټول حوایج پوره کوي. بـل دا چې زموږ د جهاد یـو لـوی هـدف لـه مؤمن اولـس د ظالمـانو لـه ظلـم څخـه خلاصول دي نو که خدای مکړه مجاهدین خپله له اولس سره شدت او ظلم ته مخـه کړي نو هم د جهاد هدف ضـایع شـو او هم به الله تعالی ناراضه وي. نو الله تعالی دې موږ ته توفیق راکړي چې د اولـس د هر مشر او کشر حقوق وپیژنو هغوی په نفرت کې وا نه چـوو بلکـې د محبـت او صمیمیت چلند ورسره وکړو.

## دامریکا ۳۰۰ عسکر به دشکست خورده رژیم کوم درد دوا کړي ؟

دکابل مخ په زوال اوشړیدلې اداره وایي چې بادار ( امریکا) یې تصــمیم نیــولی ترڅودهغــوئ دڅغورلـو اونجات لپاره افغانســتان تــه (۳۰۰ ) اشغالګرعسکرراولیږي اوټاکل شـوي هغه به په هلمند ولایت کې ځای پرځای شي.

لـه کومې ورځـې اوشـیبې چـې دامریکـا ولسمشـر ( اوبامـا) پـه خپلـه ژبـه اوپه خورا صراحت په افغانستان کې له خپل شکست او ماتې څخه پرده پورته کړه اوپه مشخص ډول یـې دمجاهدینوپـه وړانـدې خپلـه ناتواني اعلان کړه دغه اعتراف په افغانســتان کــې پــه امریکــایی غلامانودرونــداوتاریخي ګــوزار پریویســت ، دهغــو روحیــه یــې متزلزه کړه ،پوځي اوامنیتي پلانونه یې ورنیمه خوا کړل او نوریې له ژبې اوخولې دغه اوتې بوتی تری تمې شـوي چې ووایـي په تیر او یــاروان کــال کــې دوئ دا اوهاغـه لاسته راوړنې درلودلې اویابه یې په راتلونکي ولري .

دکابل رژیم داوبامـا لـه اعـلان ورسته پـه مسلسـل ډول لـه خپلو بادارانو سره تماسونه ټینګ کړل چـې کـه تاسـې زمـونږ دبـایللې اوپریـوتې روحیـې پـه رابطـه کـوم عاجـل اقـدام ونکـړي نـوممکن پـه نـوي کـال کـې مجاهدین له تیرکال څخه څوبرابره زیاتې بریاوې ولري اودافغان ولس اعتمـاد اومحبوبیـت نورپـه ځـان باندې رامات کړي .

پنټـاګون هـم پـه یـوه خنـدنې اقدام کې اعـلان وکړچې امریکـا یومخ زړه تورې شـوي نـده غـواړي لـه خپـل اجیردولـت سره مرستې اوملاتړتـه دوام ورکـړي اودژونـدي ثبوت په توګه به ډیرژرپوره (۳۰۰) اشغالګرپوځیان ورولیږي !!!!

مونږدکابل شـړیدلې اداري تـه وایــوچې ستاســې بــادار لــه ۴۹ هیوادونوسره اوږه پراوږه اود یونیم لــک مجهزاوپرمختللــی لښــکرپه وجود کې خپـل ټـول زوراوبـه کـړ، دوه تریلیونــه ډالریــې ولګــول ، ستاسې دسیاسي اواقتصادي ملاتړ پـه خـاطرېې پـه سـوونه نړیـوال کانفرانســـونه دائیـــر اوډول ډول وحشي ستراتیژی اوپـوځي جالونـه یې په افغانستان کې پلې اوتطبیـق کـړل؛ خوپایلـه اونتیجـه یــې هماغــه وه چــې اوبامـاپرې سـخوندوواهه چـې امریکااونــاټودیوې نیمــي لســیزي جګــړې ورســته پــه دې ونتوانیــده چــې ( طالــب ) مــات اوځواک یې اوبه کړای شي.

نوچې دامریکااوناټویونیم لـک پوځیـانو ستاسې واکمني یـواځې دکابل په ښارکې هم ټینګه اونافذه نکړای شوه ولایتونـه اولیري پرتې سیمي خوپه خپل ځای پریږدی

نودغـه ۳۰۰ سـوه امریکـایی عسکربه ستاسې دکوم درد دوا او بیا د هلمندپه څیرمیړنی خاوره کې چې هلته لالـه وړانـدې په زرهـاوو امریکایي اوبرتانوي پوځیان غځول شــوي اومغــروري ککــړې یــې خاورې ایرې شـویدي نوکه تاسې په دغویوڅولوغړنو اوبګیل شوو پوځیـانوزړه تـړی اوفکرکـوی چې تښـتیدلې روحیـه بـه مـو پـرې کوشیراو سراپورته کړي ،ښکاري چې دابه مو دسرتمبګي اوحماقت ورستی حداوپوله وي ؟!!

# آیا «جنگ خوب» !!!

## اوباما در افغانستان ادامه خواهد یافت؟

(حمید. م)

هفته‌ی گذشته، هنگامی که توجه رسانه‌ها درگیر ادعای بدون شواهد سیا (CIA) که گویا روس‌ها انتخابات ریاست‌جمهوری را هک کرده‌اند، بود، رئیس‌جمهور اوباما ۳۰۰ نیروی دریایی امریکا را خاموشانه دوباره در ولایت هلمند افغانستان فرستاد. در سه سال گذشته این اولین‌بار است که نیروهای امریکایی در آن منطقه‌ی منازعه فرستاده می‌شوند و این بیانگر شکست نهایی پالیسی اوباما در افغانستان است.

رئیس‌جمهوری که در پایان کار خود رسیده، وعده داده بود که در پایان دور دوم ریاست‌جمهوری‌اش تنها شمار اندکی از نیروهای امریکایی برای تامین امنیت سفارت امریکا [در افغانستان] باقی خواهد ماند. اما حالا با رفتن او از کاخ سفید، بیش از ۸ هزار نیروی امریکایی آن‌جا باقی خواهند ماند.

زمانی که اوباما برای بار اول انتخاب شد، سوگند خورد که جنگ امریکا در عراق را خاتمه خواهد بخشید (جنگ بد) و حضور نیروهای امریکایی را در افغانستان افزایش خواهد داد (جنگ خوب). او افزایش نیروها در هر دو جنگ را پایان بخشید، در حالی‌که وضعیت در هر دو کشور رو به خرابی است.

چرا نیروهای دریایی در هلمند ضرورت است؟ به‌خاطری‌که اگرچند ۱۵ سال جنگ احمقانه و زیانبخش امریکا در افغانستان مدت‌ها قبل به شکست مواجه شده بود، [اما] واشنگتن نمی‌تواند با این حقیقت مواجه شود. سال گذشته طالبان ۸۰ درصد این ولایت را تحت کنترل خود درآوردند. لذا میلیاردها دالر دیگر باید مصرف شود و جان‌های زیادی نیز از دست خواهد رفت.

آیا این ۳۰۰ سرباز نیروی دریایی چیزی را به‌دست می‌آورند که در سال ۲۰۱۱، ۱۰۰۰۰۰ سرباز امریکایی قادر نبودند به‌دست آورند؟ آیا این آخرین فشار، جنگ را به پیروزی خواهد رساند؟ به سختی! هرچه رئیس‌جمهور دستور به اقدامات نظامی در عراق و افغانستان داد، وضعیت بدتر شد. به‌عنوان مثال، در سال ۲۰۱۶ اوباما ۱۳۳۷ بمب را در افغانستان انداخته است، ۴۰ درصد افزایش نسبت به سال ۲۰۱۵. براساس آمار سازمان ملل متحد، در سال ۲۰۱۶ شمار تلفات غیرنظامیان در جنگ‌ها ۲۵۶۲ نفر بوده و ۵۸۳۵ نفر هم زخمی شده‌اند. طالبان هم پیروزی‌های زیادی را بردولت دست‌نشانده‌ی افغان به ثبت می‌رسانند.

مداخله‌گران در واشنگتن سیاست خارجی ما را بدون این ملاحظه که چه کسی انتخاب شده، ادامه می‌دهند. آن‌ها بر جنگ پافشاری می‌کنند، آن‌ها برای تغییر رژیم فشار می‌آورند، بعد برای میلیاردها دالر، تا کشورهای پس از جنگ را بازسازی کنند. زمانی که کشور «آزاد شده» !!!در یک وضعیت بدتر قرار می‌گیرد، آن‌ها ادعا می‌کنند که این به‌خاطر آن است که ما آنچه که کشور را در جای اول تخریب کرد، انجام ندادیم.

این کاملا غیرمنطقی است، اما رییسان جمهوری که مشوره‌ی نو محافظه کاران را تعقیب می‌کنند، به نظر می‌رسد توجهی ندارند. اوباما- کاندیدای صلح و رئیس‌جمهور ثابت کرده است که تفاوتی با اسلاف خود ندارد.

رئیس‌جمهور ترامپ با ۱۵ سال تجربه‌ی ناکام ملت‌سازی در افغانستان چه خواهد کرد؟ او از سیاست طولانی‌مدت «تغییر رژیم» و «ملت‌سازی» امریکا در جریان رقابت‌های انتخاباتی انتقاد کرده است و من دوست دارم فکر کنم که او سربازان را به خانه باز خواهد گرداند. اگرچند، من متعجب نخواهم بود اگر او اقدامات نظامی امریکا را در افغانستان برای یک بار و همیشه جهت پیروزی در جنگ افزایش دهد. او موفق نخواهد شد اگر همچنان این کار را ادامه دهد، چون این جنگ قابل بردن نیست. هیچ‌کسی نمی‌داند «پیروزی» چگونه است. ما ممکن است کشتار بیشتر سربازان امریکایی در افغانستان را از حالا بهتر ببینیم حتا، اگر برنامه چنین است. این یک تراژدی وحشتناک خواهد بود.

## له افغانستانه ستون شوي کاناډايي عسکر خپل ځان او ټوله کورنۍ وژلې

یوه کاناډايي عسکر چې د افغانستان له جګړو خپل هیواد ته ستون شوی و، نن لومړی خپله ټوله کورنۍ او بیا ځان وژلی دی.

کاناډايي رسنیو ویلي، چې نووا سکوټیا په ایالت کې د ۳۳ کلن کاناډايي عسکر «لیونیل ډیسمونډ» لومړی خپله ۵۲کلنه مور، ۳۱کلنه میرمن او لس کلنه لور وژلې او وروسته یې خپله هم ځان وژلی دی.

ځايي پولیسو سي تلویزیون ته ویلي، چې دوی د وواسکوټیا د ایالت په یوه کور کې ۴ تنه مړي موندلي دي، چې یو یې هغه کاناډايي عسکر دی چې په افغانستان کې یې د دندې پر مهال عصبي ناروغي پیدا کړې وه او بیا بیرته خپل هیواد ته راليږل شوی و.

د پولیسو تحقیقاتي ټیم ویلي، چې کاناډايي عسکر د ذهني ناروغۍ له کبله لومړی خپله کورنۍ د توپنګچې په ډزو وژلې او بیا یې خپل ځان هم په توپنګچه ویشتلی دی.

د کاناډا په راپورونو کې ویل شوي، چې تر اوسه له افغانستان ستانه شویو ۷۲ پوځیانو ځانوژنې کړي چې یو شمیر نور یې تر کلکې تداوۍ لاندې نیول شوي دي.

تر دې وړاندې ویل شوي وو، د استرالیا هغه پوځیان چې له افغانستانه ستانه شوي په عصبي ناروغیو اخته شوي او تر ډېره په ځاوژنو لاس پورې کوي.

د استرالیا د «روغتیا او هوساینې ادارې» له لوري ترسره شوې څېړنې ښودلې وه، چې د افغانستان جګړه کې له ګډون راوروسته تر دې دمه دوه سوو او دوه نوي«۲۹۲» تنو پوځیانو ځانونه وژلي دي

مرکه کوونکی: مفتي محمدګل سعيد

# شيخ القران والحديث مولانا سراج الدين حفظه الله

**زما د ورې دورې د تدريس تقريبا شلو يښت کاله کيږي
خو اوس هم هر کال زه دورې دورې د کتابونو مطالعه په دقت سره کوم**

الحمدلله رب العالمين والصلوة والسلام على سيدالانبياء والمرسلين وعلى اله واصحابه اجمعين.

امابعد! ددې لپاره چې ځوان کهول اونوی نسل دخپلو استاذانو او مشايخودژوندانه له حالاتو خبرشي، د محترم شيخ صاحب سره مې ليده کاته وکړل اوپه ډير اصرار سره مې ترينه وغوښتل چې دژوندحالات دې راته ووايه چې يې وليکم،نويې لطف اوشفقت وکړاوزماغوښتنه يې ومنله ،اوپه خوږه لهجه يې راته دژوند بشپړ حالات وفرمايل چې زه يې دلته په لنډو الفاظوکې راوړم ترڅوچې زمونږ معاصر ورونه ترينه استفاده وکړي.

شيخ الحديث مولاناسراج الدين تاركي چې دعمرزياته برخه يې داحاديثو،فقهې اوتفسيرپه تدريس کې تيره کړې ده ،دبشرحافي ،ابن جريرطبري ،اوابن تيميه الحراني په ځيريې دعلم سره دزياتې مينې له امله واده نه ده کړی ،دنيا او مافيها يې ترک کړې اوشپه اوورځ يې دکتابونومطالعې، درس اوتدريس ته ځان وقف کړی اوپه زرګونوشاګردان يې جامعې ته روزلي دي.

شيخ عبدالفتاح ابوغدة رحمه الله د خپل كتاب (العلماء العذاب الذين اثروا العلم على الزواج) په لړليک کې دهغوعالمانو نومونه راوړي دي چې هغوی دتجردزندګۍ غوره کړې وه او ځانونه يې دعلم دخپرولو لپاره فارغ کړي وو.جناب شيخ صاحب دهماغوعالمانوتاريخ را ژوندی کړاوځان يې په بشپړه توګه دعلم زده کړې ،ښوونې اوتدريس ته وقف کړی ده.

زه دخپل ګران اومشفق استاذمحترم شيخ الحديث مولوي صاحب سراج الدين نوم هم د هغو عالمانو په قطارکې راوړم چې د علم سره د زياتې مينې له امله يې نکاح ترک کړې او ودونه يې نه دي کړي .

شيخ الحديث مولاناسراج الدين دکونړولايت داسعدابادولسوالۍ دننګلام کلي په يوه عالمه اوفاضله کورنۍ کې په ۱۹۴۵ميلادي کال کې زيږيدلی دی . پلاريې مولوی احمدګل نوميده چې دميرافضل زوی دميرزمان لمسی او د محمد اکرام کړوسی دی. دوی په خټه ساپيان دي . دشيخ صاحب اکا مولوی محمود نوميده چې په ننګلام مولوی صاحب يې شهرت درلوداودخپل وخت لوی ديني عالم ؤ، دديوبندله مدرسې نه فارغ شوی ؤاودننګلام کلي کې يې لويه ديني مدرسه جوړه کړې وه او په سوونو طالبانوبه ترينه زده کړې کولې .

**زده کړې:** حضرت شيخ صاحب ابتدايي زده کړې په تيراکې وکړې اودهغه ځای له عالمانو يې استفاده کړې ده.منځنۍزده کړې يې د کوزتهکال په رحمانيه مدرسه کې له شيخ الحديث مولينا بهرمندصاحب څخه وکړې .وړه دوره اولويه دوره اوپاتې فنون يې دپيښورپه دارالعلوم اشرفيه کې له شيخ الحديث مولينامعزالحق (چې په پاچامولوی صاحب

بانـدې مشـهوراوددیوبندله مدرسـې
فــارغ شــوی ؤ)،اودهغــه لــه ورور
حاجی مولـوی صاحب زیـن العابـدین
چې هغه هم ددیوبندمدرسې نـه فـارغ
شوی ؤ،اود دچکیسرله مولـوی حسـن
االابــــرار صـــــاحب اومولــــــوی
غضنفرصاحب څخه ولوستل.په ۱۳۸۹
ق کال فارغ شو،دفضیلت پګړۍ یـې
وتړله اودیوه تکـړه مـدرس اونومیـالي
عالِم په توګه وپیژندل شو.

**تدریس :** شیخ صاحب له فراغت
نه وروسـته ۵کالـه دپیښـورپه نوتیـه
کې دریئس نورمحمدپـه مدرسـه کـې
تـدریس وکـړ. دوه کالـه یـې دسـپین
جومات په نعمانیه مدرسه کې تدریس
وکړ،دوه کاله یې په دارالعلـوم تـالاب
جومـات کـې پـه تـدریس تیرکړل،پـه
۱۹۹۳ م /۱۴۰۱ه ق کـــال کـــې
دپیښـوردنمکمنډۍ په مرکزي دارالقراء
مدرسې ته راغـی اوتـردې دمـه دلتـه
دتـــدریس ســـپیڅلې وظیفـــه
اجراکـوي.۳۷کالـه یـی دوړې دورې
تدریس وکړ.څه موده یې لویه دوره هم
درس کـړه، پـه دې هکلـه نومــوړي
وفرمایـل :څـه مـوده مـې لویـه دوره
تدریس کړه ،بیامې فکروکړچې په وړه
دوره کې علوم زیات دي نوځکـه مـې
دلویې دورې تدریس پرېښوداوله هغه
نـه وروسـته مـې ترننـه پـورې دوړې
دورې تدریس تـه ملاتړلـې ده .یوځـل
مې داقصه خپل محترم استاذپاچامولوی صاحب تـه وکـړه اوورتـه ومـې ویـل: چـې جنـاب
!مابیرته دوړې دورې تدریس پیل کړاولویه دوره مې پرېښوده نوهغه مرحوم راتـه وفرمایـل:
اوس دې درې ګټـې وکـړې یـوه داچـې دوړې دورې طالبـان زیـات وي اودلـویې دورې
دشاګردانو تعدادکم وي نوزیات شمیرشاګردان به درڅخه استفاده وکړي، دوهم داچې په وړه
دوره کې مختلف علوم (فقه ،تفسیر،اصـول التفسـیر، اصـول الحـدیث اواحادیـث ) تـدریس
کیـږي اوپـه لویـه دوره کـې یـواځې داحـادیثو تـدریس وي ،دریم داچـې مشـکوة شریـف
داحادیثوفتاوی ده له تانه احادیث هم پاتې نه دي .نوله هغې ورځې نه راپـه د ې خـوا هرکـال
په وړه دوره کې راسره له دریوسووڅخه زیات طالبان وي.

شیخ صاحب له یوه پلوه درویش، عابد او زاهد شخص دی، خو ورسره نومیـالی عـالِم
او محقق هم دی، پر خپلو افغاني روایاتو، زهد او تقوا، ښـو اخلاقـو، تواضـع اوعلمـي پلټنـو
سخت ولاړ دی، مجلس یې خو ږ او پراخ دی، د خپلو تېرو صالحینو د علم او عمل ښه نمونه
بلل کیږي، مرشدانه شفقت ،محبت او مهرباني لري، او یو شمېر شاګردان یې وروزل چـې
په حقیقت کې د ده علمي ترکه ده.

ما (ددې کرښولیکوال ورڅخه بیایوڅوپوښتنې وکړې . شیخ صاحب په ټولو فنونـوکې
دې له کوم فن سره زیاته علاقه ده ؟نویې راته وفرمایل: معاني ښه علـم دی اوزمـاخوښ دی
ځکه چې دقران عظیم الشان ښه خدمت یې کړی دی. دټولوفنونوویل په کـاردي ،ځکـه چـې
فنون ټول ګټوردي اودطالب استعدادپرې قوي کیږي، دوفـاق المـدارس علـماء کراموخوفنـون
وران کړل ،چې کوم سخت اواهم کتابونه ؤ او د طالب استعداد پرې پیاوړی کیده هغـه ټـول
یې له نصاب څخه خارج کړي دي .

دعلماؤلپاره تدریس زماپه نظر ډیرضروري ده ځکه چې په تدریس سړی ملاکیږي . وړه
دوره په دې وجه مشکله ده چې هدایې اوبیضاوي دتیږوچیچل دي،داحادیثوعلم خـونرم علـم
دی.زمادوړې دورې دتدریس تقریباڅلویښت کاله کیږي خواوس هم هرکـال زه دوړې دورې
دکتابونومطالعه په دقت سره کوم .په عاموکتابونوکې تهذیب الکمال ښکلی اوجـامع کتـاب
ده .کتاب الکمال عبدالغنی مقدسي لیکلـی ده بیـاپرې امـام مـزی چـې دمقـدسي زوم کیـده
تفصیل ولیکه اونوم یې پرې تهذیب الکمال کیښود .ابن حجررحمه الله چـې ډیرلـوی عـالِم ؤ،
ښه فکریې درلودنوتهذیب الکمال یـی راکـم کړاوتهـذیب التهـذیب یـی پـه څلورجلـدونوکې
ولیکه . شهرت خوندنه راکوي، دا ښه ده چې څوک موپانړه نه اړوي .په احـادیثوکې راغـلي
دي چې څوک وفات شي اوذڅراپرې څوک نه وي ددې کس درجې لوړیږي. په پای کې یې
یوه جامع دعاوکړه الله تعالی دې په خپل دربارکې قبوله کړي.

# ګارډين:

## د افغان جګړې د رپوټونو له امله د امريکا-

# ملګرو ملتونو اړيکې ترينګلې شوي

د برتانيا چاپ ګارډن ورځپاڼې د ننۍ ګڼې په تازه راپور کې راغلي چې د افغانستان د جګړې د راپورونو له امله د امريکا او ملګرو ملتونو د حقوق بشر ادارې تر منځ اړيکې ترينګلې شوي دي.

ياده ورځپاڼه ليکي، چې د امريکا پوځ په دې هڅه کې دی، چې د ملکي تلفاتو په تړاو عامه معلومات پټ وساتي، نو له دې امله يې له هغو نړيوالو ادارو سره اړيکې خرابې شوي چې د پېښو او د امريکايي ځواکونو د بريدونو معلومات يې له رسمي پوځي معلوماتو سره توپير لري.

په دې وروستيو کې په افغانستان کې د حقوق بشر ادارې په لومړي ځل څرګنده کړه چې امريکايي پوځونو له لوري په دغه هېواد کې ملکي خلک په بمباريو او چاپو کې وژل کېږي.

د دواړو لوريو تر منځ اړيکې وروسته له هغې ترينګلې شوې، چې د سپتمبر په وروستيو کې د امريکا د يوې بې پيلوټه الوتکې د بريد په تړاو د ملګرو ملتونو په يوه رپوټ کې راغلل چې په يوه بريد کې امريکايي ځواکونوپه ننګرهار کې ۱۵ ملکي وګړي يې وژلي دي.

خو په افغانستان کې امريکايي چارواکي وايي، چې د دوی په ياد بريد کې داعش جنګيالي وژل شوي دي.

ځينو سرچينو ويلي، چې په افغانستان کې د امريکايي ځواکونو قومندان جنرال نيکلسن په دې هڅه کې و، چې په کابل کې امريکايي پوځي اډو ته د ننه د ملګرو ملتونو استازو داخله ممنوع کړي او يا يې محدوده کړي.

د ملګرو ملتونو او د امريکايي پوځ مشرانو په دې تړاو له ګارډين سره له خبرو ډډه کړې، خو د ملګرو ملتونو يوه غړي د نوم نه ښودلو په شرط ويلي، چې د امريکا او ملګرو ملتونو بشرحقوق ادارې تر منځ اړيکې لا نورې مخ پر خرابېدو دي.

پوځي شنونکي په دې باور دي، چې امريکايي ځواکونه په افغانستان کې د خپلو عملياتو په اړه ټول معلومات تر ځانه منحصر ساتل غواړي او غواړي چې په افغانستان کې پر هر څه کنټرول ولري.

امريکايي ځواکونه په دې وروستيو کې په افغانستان کې ملکي تلفات ډېر کړي او په چاپو او بې پيلوټه هوايي بريدونو کې ملکي خلک په نښه کوي.

د روان کال ۲۰۱۶ د سپتمبر مياشتې پر ۲۸ نېټه امريکايي ډرون الوتکو د ننګرهار ولايت په اچين ولسوالۍ کې پر يوه شخصي کور بمبار وکړ چې له امله يې ګڼ ملکي کسان ووژل شول.

افغان چارواکو هغه وخت وويل چې په بمبار کې ۱۵ داعشي وسلوال او ۳ ملکيان وژل شوي، خو د ملګرو ملتونوبشرحقوق ادارې تر څېړنې وروسته په خپل راپور کې وويل چې په دغه بريد کې ۱۵ ملکي خلک وژل شوي دي.

د ګارډين په تازه راپور کې راغلي، چې دوی د هغه روغتون څخه ليدنه وکړه کوم ته چې له پېښې وروسته مړي او ټپيان را وړل شوي وه، هغوی ټول ملکي وګړي وه او امنيتي چارواکي يې هم په کيسه کې نه وه، د ګارډين په وينا

که چیرې د داعش وسلوال وی نو حتما به د ملي امنیت او پولیسو پهره به ورباندي راټول وی او ساتنه به یې کولی.

د یادونې ده، چې د اچین ولسوالۍ د بمبار وروسته امریکایي ځواکونو د ننګرهار په شیرزادو کې، د روزګان په مرکز ترین کوټ کې او په وروستۍ پیښه کې یې د کندز مرکز ته نیژدې د بوزکندهاري په سیمه کې پر یوه کلي چاپه ووهله او بیا یې پر کلي بمبار وکړ چې له امله یې د ښځو او ماشومانو په ګډون ۳۰ تنه عام خلک ووژل شول.

که څه هم د یادو بمباریو دعوه دولت وزیري وکړه، چې دولتي ځواکونو کړي، خو وروسته بیا امریکایي ځواکونو په یوه خبرپاڼه کې څرګنده کړه، چې بمباري د دوی له لوري شوې او د ملکي تلفاتو د رامنځته کېدو پلټنې خبر یې ورکړی و.

د شنونکو په باور د ملګرو ملتونو د بشرحقوق اداره یوازې هغه راپورونه سم خپروي چې امریکایي ځواکونه ورسره رضایت ښکاره کړي، د هغو د نه رضایت په وخت کې دوی هم خپل راپورونه پټ ساتي.

دوی وایي، چې دغه اداره هغه وخت خپل راپورونه برابروي چې کومه پېښه ډېره رسنیزه شي او یا هم د امریکایي ځواکونو په تاوان نه وي.

## واقعا زیباست این حکایت

سلطان محمود غزنوی دستور داد هر کس جمله حکیمانه یـــي بگوید به او صد سکه طلا بدهند...

روزی که از کنار مزرعه ای میگذشت پیرمردی را دید

که در حال کاشتن نهال زیتونی است.

سلطان جلو رفت و از پیرمرد پرسید نهال زیتون بیست

سال طول میکشد تا ثمر بدهد تو با این سن و سال به

چه امیدی این نهال را میکاری؟؟؟

پیرمرد لبخندی زد و گفت:

دیگران کاشتند و ما خوردیم ما میکاریم تا دیگران

بخورند!!!

سلطان از جواب پیرمرد خوشش آمد و گفت:

واقعا جواب حکیمانه یي بود و دستور داد به او صد سکه

طلا بدهند...

پیرمرد خندید شاه گفت:چرا میخندی؟

پیرمرد گفت:

زیتون بعد از بیست سال ثمر میدهد اما زیتون من

الان ثمر داد...

سلطان باز هم از سخن پیرمرد خوشش آمد و دستور داد به او صد سکه دیگر بدهند. پیرمرد باز هم خندید سلطان گفت:

این بار چرا میخندی ؟

پیرمرد گفت : زیتون سالی یکبار ثمر میدهد اما زیتون

من امروز دوبار ثمر داد!!!

سلطان دستور داد صد سکه دیگر به او بدهندر...

."محتسب" مستی بـه ره دیـد و

گریبـــانش گـــرفت ،

"مســت"گفــت : ای دوســت ایــن پیراهن است،

افسار نیست!

گفت : مستـی ، زآن سبب افتـان و

خیــزان مـی روی ،

گفت : جــرم راه رفتـــن نیست ، ره همـــوار نیست!

گفت : مـی بایـــد تـــو را تـــا خـانه قـــاضی بـــرم ،

گفــت : رو صبـــح آی ، قـــاضی نیمــه شب

"بیــدار" نیست!

.گفت : تـا داروغـــه را گــوئیـم در مسجد بـــخواب ،

گفــت : مسجـــد خـــوابـــگاه مـــردم

بـــدکـار نیست!

گفت : "دینــاری" بــده پنهــان و

خــود را وا رهـــان..

گفت : کـار شــرع، کــار درهـــم ودینـــار نیست!

.گفت : آنقـــدر مستــی زهـــی از ســربــر افتادت کلاه

گفت : در ســر "عقـــل" بایـــد ،

بـــی کلاهی عـار نیست!

.گفــت : بایـــد "حـــد" زننـد هشیـــار مـــردم مست را!

"گفت : هشیـاری بیـــار.. اینجـا کسی

**ولس سوله، خو ولسي جرګه جګړه غواړي**

د دسمبر په ۲۷مه چې په مسکوکې دري هیوادونو پاکستان ، چین او روسیې په سیمه کې د روانو ترخو حالاتو او په ځانګړې توګه له افغانستانه ګاونډیو هیوادونو ته د احمالي خطر په اړه کومه غونډه جوړه شوې، د بهرنیوچارو وزارت یې ځرګند مخالفت وکړ او ویې ویل، د دې غونډې جوړول افغانستان ته هیڅ ګټه نه لري بلکې دا د افغانستان په کورنیوچاروکې ځرګنده لاس وهنه ده.

همدا رنګه ولسي جرګې په ځای د دې چې د افغانستان د مسئلې د حل لار او یوه امننا که راتلونکي په اړه خپل دریځ ځرګند کړي، اندیښنه یې وښوده چې افغانستان ته په یاده غونډه کې بلنه نه وه ورکړل شوې او افغانستان د داډول غونډو مخالف دی.

افغان چارواکي او په ځانګړې توګه د کورنیوچارو وزارت، ولسي- جرګه ، د مشرانو جرګه او د ګډوله حکومت دوه ډاکټران چې نور یې دافغان ولس د سر او مال دساتنې توان له لاسه ورکړی دی،د تیر په ځیر یې یوځل بیا د ګاونډیانو پرخلاف د تورونو لړۍ پیل کړه.

د مشرانو جرګې ځینې استازو له حکومته وغوښتل، چې د ګاونډیوهیوادونو په مقابل کې خپل سیاست روښانه کړي، د یادې جرګې استازي پرایران تورلګوي، چې طالبانو ته وسلې ورکوي او د هغو کسانو په اړه باید څېړنه وشي چې د ایران په ملاتړ، په افغانستان کې له طالبانو سره یوځای فعالیت کوي.

حکومت د روانې جګړې د مهار کولو مخه خپله نیولې، چې کله هم د افغانستان د مسئلې دحل په اړه کومه لاره جوړه شي دوی چې له بهره په چوکیوکښېنول شوي دي، په غوږ کې ورته د مخالفت سندره زمزمه کړل شي ترڅوپورې چې د افغانستان په اړه کوم بنسټ یا نور هیوادونه د سولې هڅې کوي دوی په هغه بنسټ او یا سوله غوښتونکي هیواد پر خلاف خپل مخالفت ته ادامه ورکوي څو په افغانستان کې د سولې مخه ونیول شي.

د ولسي- او مشرانو جرګې غړې د همدې هدف لپاره کښېنول شوي دي، چې په هیواد کې دسولې او امن مخه ونیسي- ښکاره ثبوت یې تیره ورځ په مسکوکې دشوې غونډې مخالفت دی.

د یوې خوا ټول دولتي چارواکي، ولسي جرګه، د مشرانو جرګه، ډاکټر عبدالله، اشرف غني او په ارګ کې ناست کرایه کښ سلاکاران وایي چې ګاونډیان د افغانستان په کورنیو چارو کې مداخله کوي او دسولې مخه یې ډب کړې ده؛ خو چې په مسکو کې ګاونډیانو دافغانستان روغې جوړې ته لاره برابره کړه دوی یې په مخالفت چغې پیل کړې.

اوس دادی خپله د امریکا سناتوران او په امریکا کې د واکمن ګوند غړي وایي، په افغانستان کې جګړه د کامیابۍ لار نه یواځې په مذاکراتو دا مسئله حل کیدای شي؛ خو دوی چې د سولې په مخالفت هره میاشت د زرګونو ډالرو په ورکړه اکمالیږي، تل د افغانستان د سولې سره مخالفت کوي.

یوسلیم عقل به هیڅ وخت دا ونه مني، چې یوه ورځ له ګاونډي هیواده په سوله کې مرسته وغوښتل شي او بله ورځ دې همدا ګاونډي هیواد په یوه او بل نامه تورن کړل شي.

د مشرانو جرګې چې تیره ورځ ایران تورن کړی وایي طالبانو ته وسلې ورکوي او په داخل کې یو شمیر کسان شته چې د طالبانو ملاتړکوي، همدا ډول کله په پاکستان کله په ایران او دا دی اوس یې پر روسیه هم تورونه پورې کړل. دا د سولې سره ښکاره مخالفت دی.

عجیبه خو داده چې خپله دې د امریکا سره دوستي کوي، د خپلې خاورې او آسمان ټول واک دې په لاس ورکوي او چې روسیې د طالبانو سره د سولې په اړه د خبرو وینا یاده کړه د روسانو سره ناسته او دوستي جرم شو.

روسیه او امریکا دواړه یرغلګر هیوادونه دي، روسانو د افغانستان د یرغلګر لپاره له ځانه سر ه اشرګړي نه وو راوستي، امریکا پر افغانستان د یرغل لپاره اشرګړي هم راوستي دي، هغه بې غزتي او بې حیایي چې امریکا افغانانوته واړوله روسانو نه ده اړولې، موږ د روسانو ملاتړي نه یو د روسانو جرایم هم موږ ته یاد دي دواړه د افغانستان دښمنان دي.

د مشرانو جرګه او ولسي جرګه په ځای د دې چې هیواد کې د سولې زمینه برابره کړي له بهره د ورکړل شوي پلان له مخې دسولې مخه ډب کوي.

ولس سوله غواړي خو ولسي- جرګه سوله نه جګړه، ځکه چې دواړه جرګې او یو شمیر واکمن په افغانستان کې خپلې ګټې او شتون د جګړې په دوام کې ګوري.

# کندوزیان وایي

## د اربکیانو له لاسه نه د لور، نه د ځوی او نه د خپل مال واک لرو

الماس خدرخېل

د کندوز خان اباد او یو شمیر نورو ولسوالیو اوسېدونکي وایي، په دې ولایت کې د غیر مسئوله وسلوالو "اربکیانو" له زور زیاتي او ظلم نه په تنګ راغلي یو.

د دوی په وینا په دغه ولایت کې ورځ تر بلې د غیر مسئوله وسلوالو حضور زیاتېږي او په دې وروستیو کې یې په دې ولایت کې قرارګاوې هم جوړې کړې دي.

دغه غیر مسئوله وسلوال یا اربکي ملیشې له تېرو څو کلونو راهیسې د امریکایانو په مشوره په هېواد کې جوړ او ملي پاڅون کوونکو په نامه د امریکایانو له خوا تمویل شول او د هېواد په بېلابېلو سیمو کې یې قرارګاوې او پوستې جوړې کړې.

په همدې تړاو د خان اباد ډېری خلک وایي، چې د غیر مسئوله وسلهوالو له ظلم او ځورونې په تنګ راغلي یو او دولت هم د خلکو ستونزو ته پاملرنه نه ده کړې، نو خلک دې ته اړ شول څو د خپل مال او د ځان دفاع په خاطر له طالبانو سره یوځای شي.

د خان اباد ولسوالۍ یوه اوسېدونکي ازادۍ راډیو ته وویل: "اربکیانو زما زوی له کوره وایست او په د خپل کور مخ ته یې په ډزو وواژه، ٦ ورځې کېږي چې زما زوی یې وواژه، نو اوس والي صاحب خواته راغلي یم څو زما غږ او عرض واورې".

د یادې ولسوالۍ یو بل اوسېدونکی وایي: "موږ د دغو اربکیانو له لاسه په تنګ راغلي یو، نه څوک د خپلې لور واک لري، نه څوک د خپل ځوی واک لري، نه څوک د خپل مال او پیسو واک لري موږ د دغو اربکیانو له ظلم او ځورونې څخه ډېر په تنګ یو".

د یادې ولسوالۍ د قومي مشرانو په وینا، د دغو خپلسرو ټوپکیانو په ملاتړ کې د پخوانیو تنظیمونو مشران همدارنګه جګ پوړي دولتي چارواکي لاس لري.

بلخوا د خانآباد ولسوال حیات الله امیري هم د خلکو خبرې تائیدوي او د کندز سیمه ییزو چارواکو څخه غواړي څو له دوی سره د دغو خپلسرو وسلهوالو په خلع سلاح کولو کې مرسته وکړي.

په ورته وخت کې د کندز والي اسدالله عمرخېل، د دې ولسوالۍ ټولو غیر مسؤل وسلهوالو ته خبرداری ورکړ چې په سیمه کې له خپلسرۍ څخه لاس واخلي او کنه د دوی پر وړاندې به له قانونې او پوځي چلند څخه کار واخلي.

که څه هم قومي خلک په سیمه کې چارواکي ګرم بولي چې د اربکیانو او غیر مسئوله وسلوالو ملاتړ له ځان سره لري، خو د کندوز والي شاغلي عمرخېل زیاته کړه:"هرهغه څوک چې غیرقانونې وسله لري او په دولت کې رسمیت نه لري، هغه هم زما دښمن دي او هم د ولس دښمن دي، که څوک وسله اخلي وسله او ځان دې په دولت کې ثبتاو راجسترکړي، څو موږ خپل دوست او دښمن وپیژنو".

له دې مخکې هم د هېواد په یو شمیر زیاتره سیمو کې او بالخصوص د غزني په مقر کې دې ترهګرې ډلې هغه جنایات ترسره کړه چې قلم یې په لیکلو د عفت تویېدلو وېره احساسوي، په هغه سیمه کې هر دوکاندار مجبور دی چې ترهګرو اربکیانو ته د دوی دچرسو لپاره هر اوونۍ زر کلدارې ورکړي، او که څوک ترې انکار وکړي ممکن په مرګ یې تمامه شي.

هلته اربکیانو داسې حالت جوړ کړی و، چې هره ښایسته پېغله پخپلې کورنۍ پسې اور ګرځېدلی و، هر اربکی حق لري چې یوه ښځه پرېږدي او بله وکړي ، هر اربکی حق لري چې له چانه یې خور لور وغوښته باید ورېې کړي.

هر اربکی حق لري چې د چا له خور یا لور سره د مینې پر نامه کومه اړیکه وساتي او که د دې ټولو جنایاتو په وړاندې چا غږ وکړ، له پرلپسې جنسي تېریو وروسته به یې ځای ګور وي.

د هېواد په بېلابېلو سیمو کې اربکیان په لویو لارو خلک شکوي او د ګټو موټرو نه په زوره پیسې اخلي.

د خاناباد ولسوالۍ خلک خبرداری ورکوي، که حکومت ډېر ژر د دغو خپلسرو وسلهوالو پر وړاندې لاس په کار نهشي، نو شایي د دې ولسوالۍ ډېری خلک خپل ملاتړ له طالبانو څخه اعلان کړي.

د خاناباد ولسوالۍ د کندز شمال ختیځ لوری ته موقعیت لري او د دې ولسوالۍ ډېری اوسېدونکي پر زراعت او مالدارۍ بوخت دي، خو په دې وروستیو څو کلونو کې غیر مسؤل وسلهوالو د دې ولسوالۍ خلکو ژوند یې له ډېرو ننګو سره مخ کړي دی.



# دهیلو لمر یې څرک وهي

د عابد لیکنه

هو! په هغو ورځوکې يې په چا قدر نه و، له هرډول وېرې پرته خلک په خپلو کارونو بوخت و، دنن ډول ډول خطرونه، وېره اوترهه نه وه، هرسړي په شته برخه قناعت کړی و، هیچا د بل حق خوړلی نه شو، دادنی جرم پوښتنه اوبازخواست به کېده، دآرام اوسکون فضاوه، هرساکښ خپل تنفس داسلامي نظام په هواکې اخیسته ، دافغان ولس دبې دریغه قربانیو اوجهادونولاسته راغلی نعمت و. په قدریې پوه نه شوو، کفران يې وشو، لکه څنګه يې چې حق وº په هسې سترګه ورته ونه کتل شول، زمونږ ټولو ددغه کفران اونه پاملرنې یا بې پروایي وجه وه چې ددې ستر نعمت زوال مو ولید.

ددنیا اونفسي خواهشاتو په لېونۍ مینه کې خلک ړانده شول، دشیطاني لښکرو په مخ کې وګېډل، په استقبال او بدرګه کې يې دایمان په خطرهیڅ باک رانه ووړ، ددجالي لښکرو سحر اوجادو داسې لاندې کړل چې دلمرپه څېر له ښکاره حقیقتونو انکاري شول، هغوی ته په خدمت اوغلامۍ کې يې ملا اوڅېونه مات شول، دډېرو کمو سیکو لپاره له انساني همدردۍ ووتل اودخپلو بې وزله اوناچاره خلکو په وینو نه مړېدل .

امن اوډاډ له منځه ولاړ، دزورواکو اولنډغرو راج حاکم شو، مافیا دولس پرستوني منګولې خښې کړې، عزت اوناموس له خوندیتوبه ووت، دنیایي شته ښه ډېرو، خو خوندیتوب نه و، بلډنګونه اومانۍ جوړې شوې، دموټرو خواري نه وه، خو له اولاده محرومېدل ورسره و، پانګه ډېره وه، خو سوداګري په خطرکې وه اودتجارت وده دسرپه زیان تمامېده، پروژې ډېرې وې، خو دامنیت لګښت یې دتطبیق ترلګښته لوړ و، مکتبونه اولېسې ډېرې شوې، خو فکري انحراف او دزده کړې دسطحې ټیټوالی راته په میراث پاته شول، دبیان دازادۍ وویل شول، مطبوعات اورسنۍ ډېرې شوې، خو دپردیو دکلتور په ترویج يې اسلامي ثقافت او ملي عنعنات راڅخه واخیستل، فکري ازادۍ سلب شوه، ړانده تقلید يې ځای ونیو، دافغانیت په تارتړلی یوموټی ملت په ژبو اوسمتونو ووېشل شو، وحدت او یووالی په لوی لاس له منځه یوړل شو، تفرقه او نفرت خپور شو، دیني ارزښتونوته په کمه وکتل شول، فسق اوفجور اوج ته ورسېدل، له هیواده سره دمینې په غټو غټو دعوو يې دهیواد دښمنانوته سترې ونډې او بېلابېلې لاسوهنې ومنلې ...

دغو حالاتو هغه ټولې چې ولس يې یوځل دتنظیمي لیوانو له شراوفساد څخه ژغورلی وه بیادېته مجبورکړ چې ددې مظلومو آه اوفریاد واوري، داشغال دتیارو په وړاندې دخپلواکۍ مشال راواخلي، بیا دوینو قربانۍ ورکړې اودخپلو سرونو په نذرانه ددغو فریادونو ځواب ووایي .

هو! همداسې يې وکړل، یوځل بیاد رزم ډګر ته په بزم راوړاندې شول، زندانونه پرې ډک شول ، هجرتونه يې ومنل،

تعذیب شول، ډله ډله ووژل شول، د ځمکې پـه سر دژونـد حق ترې واخیستل شو، تنها په انساني حققوهم ورتـه څـوک نه قائلېدل .

خو له مبارزې يې لاس وانخیست، سرونه يـې وښـندل، وجنګېدل او ښه وجنګېدل، د تکتيکونو اومهارتونو تاریخونه يې پرېښودل، لويې تـوطيئې اوسـترې دسيسـې يـې شـنډې کړې، داسې دسیسې چې په نړیواله سطحه شيطاني مغزونو جوړې کړې وې، دسربښندنو او اتلولیـو نـه منـونکي مثالونـه يې وړاندې کړل .

اوبالاخره يې خپله مبارزه لهيوې نيمې لسيزې وروسته دې حدته ورسوله چې دوخت فرعون ورته سلامي شو او نور له دې حقاني ټولي سره د ډګرلـه مبـارزې لاس پـه سرشـو، خپـل ټـول وس يـې ورسره وکړ،خـو آخـرهم پـه دې ترخـه حقيقـت اعـتراف تـه مجبورشـول چـې" ...طالبـان نـه شـو ماتولای ..."

اوس يې چې په کابـل کـې لاسپوڅي داحـال وينـي لـه سختې مایوسۍ سره مخ او دکودتايي ګډوډۍ ښکار دي، وار له مخه هم په حکومت کې مافيايي شبکې او زورواکـي واکمن و، اوپه هيڅ اداره کې د انصاف او اصـولو د مراعـت هيله نه کېده، اوس نو هر په دولتي ګـدۍ ناست کـس لـه موقع نه په استفاده، اداري فسادته متې رانغښـتي، پـه هـر جنايي جرم کې ککړ دي ...د ډول ډول اختلافاتو ښکار دي، دوستمي اومزاري لښکرې بيا دګډوډيوپـه انتظار پـه کابـل کې ځای په ځای شوې، له يوه مخه خلک اروپايي هيوادوته




له کورنيو سره په تېښته دي، بيـا دنويمـو کلونـو دتنظيمـي جنګونو اټکلونه کيږي.

ځکه نودامن دهيلـو سـترګې دوی تـه اوړي، ولـس لـه هرلوري اوهرځواکه ناهيلي شـول، هـيڅ قـوت ونـه توانيـده چې دلته دماداياتو پـه زور دګډوډيومخـه ونيسيـ، نـاکراري اوفسادونه ورک کړي، بلکې دوی به يې پخپله سـبب و، پـه رښـتيا چـې دې خـاورې او ولـس تـه دهـرډول دردونـو دوا يواځې اسلامي نظـام دی اوبـس، همـدا لامـل دی چـې ورځ تربلـې يـې پـه ولايـاتو او ولسـواليوکې واک او ځـواک پـه پراخېدو دی اوله ډېرو آزموينو وروسته يې دادی دهيلو لمر ځرک وهي اوپه هرډګر کې يې دبريا اوکاميابۍ اميدونه پـه ټوکېدو دي، متعال ځښتن دې ددوی په لاس سوچه اسلامي نظام پلی کړي .

## د حضرت سلمان فارسي رضی الله عنه غوره وينـاوې

۱ ــ دهرښه کار په پيل کې ناشونی وي.

۲ ــ دانسان ستر دښمن دهغه ګناه ده.

۳ ــ دچا علم چې له ماځخه کم وي زړه مې پرې درد کوي اوچې دډېر علم خاوند وي کينه مې ورته په زړه کې نه راځي.

بشیر

# دمرغومي ۲۱مې

# درې بریدونو ته کتنه

له شک پرته د ټول هېواد په لر اوبر کې په یرغلګرو امریکایانو او دهغوی په لاسپوڅو دمجاهدینو لخوا دتندریزو اوکامیابو بریدونو توپاني سلسه پراخه او غځیدلې او په ترڅ کې یې هره ورځ لسګونه بهرنیو اوکورنیو اجیرو عسکروته په درنې مرګ ژوبلې او ښتو سربیره پراخې سیمې داشغالګرانو دناولې سلطې نه په ازادېدو داسلامي امارت دبیرغ او حاکمیت ترسیوري لاندې راځي

داچې یواځې دیوې ورځې په اوږدو کې دمجاهدینو لخوا په ټول هېواد کې په دښمن څومره بریدونه کېږي؟ دهغوټولو څېړنه او ور ته کتنه کول دکوم لیکوال دقلم له وس وتلی کاردی او بیا د پوره یوې میاشتې دننه ټولو بریدونو ته کتنه خو دامکان له پولو هم پسې اوړي!

بناءً دلته مو دمرغومي میاشتې د۲۱مې ټولو بریدونو ته نه بلکې هغو دوه بریدونوته کتنه کړې چې په کابل او هلمند کې داستخباراتو په مرکزونو ترسره او دامارت دویاند له لوري یې مسؤلیت منل شوی ددې ترڅنګ په کندرهار کې یو جنجالي خبرته هم کتنه شوې چې لا تردې شیبو یې چا پړه نده منلې...

**کابل:**

په یاده نیټه پلازمینه کابل کې دګوډاګي رژیم داستخباراتو د مامورینوڅخه په ډک کاسټر موټر پرلپسې دوه فدایي بریدونو تراویااوو زیات کسان مړه اوژوبل کړل

دخبري سرچینو دراپورونو سره سم : لومړی په دارالامان سیمه کې داستخباراتو دپنځم ریاست په هغه کاسټر موټر چې استخباراتي مامورینوڅخه ډک وو دواسکټ په واسطه فدایي بریدو شو، چې په سبب یې دیاد ریاست دیرش تنه مامورین مړه اوټپیان شول ، ورپسې جوخت چې کله دبرید ځای ته د چټک غبرګون قطعې او داستخباراتو نور عسکر راغلل څو هلته پراته مړي او ټپیان پورته کړي پر هغوی د یوموټر په واسطه بل برید و شوچې دهغه په ترڅ کې ۴۲ نور عسکر مړه او ټپیان شول

په همدې یاده نیټه د هلمند لښکر ګاه ښار دوهمې حوزې اړوند په (بیټ ټو ون) سیمه کې دمزدور رژیم په یوه مهمه استخباراتي غونډه د تکتیکي برید په ترڅ کې درژیم مهم چارواکي مړه اوژوبل شول دراپورو سره سم : لومړی یومجاهد د غونډې دځای په دروازه کې ولاړپهرداران د کلاشنکوف په ډزو ووژل او بیا یې هم هغه پخپله منفجره توکي دغونډې دننه و رسول ، هلته په انفجار ورکولو یې دغلیم ۱۶مهم قومندان او ګڼ شمیرجاسوسان او داربکیو مشران مړه او ټپیان کړل دبرید وروسته برید کوونکی په خوندي توګه ځان ترنورو مجاهدینو رسولی دی

وینو دواړه بریدونه پوره کامیاب او هدفمن دي او له دې پلوه هیښوونکې او حیرانوونکې دي چې د مزدور رژیم داستخباراتو (ملي امنیت)په مامورینو، جاسوسانو او قومندانانو ترسره شوي دي

ولې پوهیږو هر حکومت استخبارات ددې لپاره ګوماري چې هغوی دنظام او حکومته دفاع وکړي، ددولت زیربناوې او مراکز ددښمن له بریدونو مصؤن او وژغوري، دمقابل طرف جنګي پلانونه کشف او له منځه یوسي لیکن جوته ده چې

داسلامي امارت غښتلي مجاهدين دومره فعال او بيدار دي چې مخامخ دمزدور رژيم په هغه ارگانو عمليات او بريدونه پلانوي او بيا يې سرته رسوي چې هغوی ته په نور حکومت باندې دبريدونو دمخنيوي پخاطر پريمانه لگښتونه او وسائل ورکول شوي ،هغوی له نورحکومته خو دفاع نشي کولی آن چې له خپله خانه هم ددفاع کولو وړتيا يې له لاسو ورکړې

په پوره باور دې بريدونو وښوده چې دامريکا پلوي رژيم استخباراتي ماشين دومره له کار او فعاليت لويدلی دی چې په نور دولت دبريدونو مخنيوی ، د مجاهدينو دپلانو نو او بريدونو کشفول او له منځه وړل خو لري خبره ده اوس له ځانه هم ددفاع کولو توان نلري

دمجاهدينو لپاره دا د ډاډځای دی،ولې غښتلي اوپياوړي استخبارات هر حکومت او نظام ته په حياتي معنی ارزښت لري اوکمزوري ا و بې تجربې استخبارات دهردولت او نظام دزوال نښه ده...

دهر حکومت استخباراتي چينل چې لاسته راووړنې ونلري له سقوطه يې هيڅ څواک نشي ژغورلی دامريکا پلوي رژيم استخباراتي چينل لاسته راوړنې څه چې رژيم ته به پرې لگښتونه او دبوديجه مصرفول هم بوج وي

دپوځي چارو کتونکو په نظر:د رژيم استخباراتي کړی له دې امله پاته دي چې ولس ورسره په واټن کې دی او ورسره هيڅ راز خواخوږي نلري او جوته ده چې په نړۍ کې کامياب استخبارات هغه دي کوم چې د ولس په منځ کې ريښې ولري او د ولس له حمايې او ملاتړه برخمن وي له شک پرته دملي امنيت په نامه سړي خواره جاسوسان او کارمندان په ولس کې خواخوږي څه چې منفور دي او تري خلک کرکه کوي چې ددې عمده لاملونه دادي:

**لومړی:** افغان ولس په مجموع کې دشوروي يرغل په مهال د خاد وحشي شبکې ظلمونو او جنايتونو داستخباراتوله نوم دومره متنفرکړی چې نن هم چاته ورپه زړه شي نو زړونه يې تري چوي

**دوهم:** دامريکا يې يرغل وروسته بيا هم هغو دکې جې بې وحشي شاگردانوته دافغانانو دځورولو او ربړولو چانس په لاس ورتلو سره هممغسي وحشيانه نادودې او ځورونې يې وکړې چې تراوسه دوام لري دولس په عامه ذهنيت کې يې هم هغه ترخې او بدې پيښې بيا تازه کړې په دې وجه په ولس کې تري کرکه او نفرت په څپو دی دنيړدې هر باضمير ه افغان ورسره په مرسته او همکارۍ خجالت محسوسوي... زياتره پکې لوچکان، خپل سري وحشيان ډوله خلک راټول دي چې دهغو په کړنو خلکوته دوياړلو په ځای شرم پکاردی



**دريم:** په استخباراتوکې زياتره لوړپوړي مامورين ديوتوکم ، يو نژاد يوې ډلې پورې تړلي دي،هغوی زياتره توکميز، نژادي او تنظيمي تبعيضونه پالي، خپلو گوندي او نژادي ملگروته دهر ډول اخلاقي جرمونو او فسادونو دسرته رسولو لپاره اسانې برابروي که يونيم چېري ، دکوم جرم، غلا، فساد او اختلاس په تور ونيول شي ژربيرته خوشي کېږي او په مقابل جانب کې دنورو توکمونو او ډلو له خلکو سره نهايتي معاندانه ، ظالمانه او دوحشت څخه ډک برخوردکېږي، طبعي ده په داسې حالت کې ولس هم اړدی چې له طالبانو مرسته وغواړي او ددې فاسد نظام درانسکورلو لپاره دطالب سره ملاتړ وکړي ،چې ددې ولسي ملاتړ په نتيجه کې مونږ گورو طالب او مجاهد دومره دقيق عمليات او بريدونه له پلانولو څخه نيولې تر سرته رسولو پورې ټول په بريمنه توگه کوي او استخبارات يې په باب هيڅ علم نلري چې دا يو ستری بری اولاسته راوړنه ده

**څلورم:** عمده لامل چې مجاهدين يې ديته اړکړل چې داستخباراتو په مامورينو او جاسوسانو دعملياتو ترکيز ډېر کړي دادی چې هغه طالبان او مجاهدين چې کله په جنگ کې درژيم لخوا نيول کېږي، دتحقيق په نوم استخباراتوته سپار ل

کېږي، چې هلته دتحقیق په دوران کې مستنطقین ددې لپاره چې دامریکایې بادارانو څخه ډالر ترلاسه کړي طالبان شکنجه کوي، په ډول ډول اذیتونو یې ځوروي او ډېر وحشیانه چلند ورسره کوي، ددې لپاره چې دهغو مظلومو بندیانو غږ واخستل شي مجاهدینودخپلو بریدونو پام درژیم استخباراتي خوا ته گرځولی ځو هغه وحشي استخباراتي څارنوالان او مامورین چې مجاهدین ځوروي دځپلو بدو او وحشیانه کړو وړو تراخه وڅکي چې دادی په یوه ورځ لسگونه استخباراتي مامورینو دخپلو بدو اعمالو بد انجام ولید،په راتلونکي کې به هم مجاهدین کوښښ وکړي چې پخپلو بریدونو کې د غلامې استخباراتي اداري کارکوونکي او جاسوسان زیات متضرر کړي

بل دا هم جوته شوه چې داسلامي امارت مجاهدین دبریدونو په پلانولو کې له زیات دقته په کار اخستلو سره لاسته راوړني لري دبېلگې په ډول: دکابل په یاد برید کې دغلام رژیم له اویا زیاتو کسانو ته یې مرگ ژوبله واړوله په هلمند کې تنها یو مجاهد تر١٦ زیات چارواکي ووژل د پوځي کارپوهانو له نظره دا په دښمن د د برلاسۍ او زړورتیا ښکارندویه دی اوجوتوي چې ددښمن زور اوبه شوی...

## کندهار:

په یاده نیته کندهار هم دیو خونړي برید شاهد و،اسلامي امارت ددغه بریدمسؤلیت دنه منلو په ترڅ کې ویلي چې یاد برید درژیم دچارواکو دخپلمنځي اختلافاتو او تربگینو نتیجه دی، په کوم کې چې درژیم دوالي، مرستیال والي، پارلیمان وکیلانو او دیپلوماتانو دمرگ ژوبلې سربیره دمتحده عربي امارتو ٥دیپلوماتان هم مړه او سفیر یې ټپي دی له دې پلوه د دغه برید اهمیت په نړیوال کچه هم ډېر دی

دسیمې اونړۍ دچاروکتونکي دطالبانو دغه دریځ چې[ یاد برید درژیم دچارواکو ترمنځ دغیرعلني مخاصمتونو او رقابتونو پایله بولي]دپام وړگڼي او زیاتوي چې رښتیاهم دکندهار ځایي چارواکې په یوبل باندې دسبقت مندلو په غرض سره په کمین کې دي ،په دې لړ کې چې ترنورو دتور ډېره گوته نیول کېږي هغه دکندهار امنیه قومندان رازق دی څوک چې دحامدکرزي دوخت بقایه هم گڼل کېږي .

نوموړی له ډېر وخت راهیسې په دې هڅه او هاند کې چې په ټول لوی کند هار دخپلې واکمنۍ راج ومنې په اشرف غني اونورو دفشار راوړو لپاره چې هغوی رسماً رازق دټول لوی کندهار بې تاجه پاچا اوگڼي دغه ډول بریدونه اوچاودنې کوي په دې توگه دپړې زیاته گوته هم هغه ته نیول کېږي ولې دبرید څخه څو دقیقې وړاندې هغه له خپل کوچ نه پورته شوی چې څنگه خوندي ځای ته رسیدلی چاودنه رامنځته شوې، که رښتیاهم طالبانو په دې برید کې لاس درلودای نوبیا هغوی رازق چې ناست وو ولې چاودنه نه کوله ځکه ښکاره په کندهار کې خو قومندان رازق دطالبانو قوي دښمن دی نو دا عقل هم نه مني چې څوک خپل لوی دښمن ته دصحنې څخه دوتلو فرصت ورکوي او پاتې نورو باندې چاودنه کوي...

بل نظردادی چې دابرید دکندهار استخباراتو درياست او رازق په گډه ددې لپاره کړی دی چې دمتحده عربي امارتواو طالبانو ترمنځ اړیکي سبو تاژ کړي، ځکه متحده عربي امارات یو له هغو هېوادو څخه دی چې دطالبانو امارت یې په رسمیت پیژندلی و او ورسره یې فعال دیپلوماتیک اړیکي لرل چې دامریکا دیرغل وروسته کله دطالبانو حکومت سقوط وکړ بیا هم دطالبانو او متحده عربي اماراتو ترمنځ کومه داسې ستونزه نده پیښ شوې چې په سبب یې هغوی دیته اړشوي وو چې دکندهار دبریدپشان گام دي پورته کړي بل تردېره ویل کېږي چې متحده عربي امارت هم دنړۍ دنورو هېوادو په څېر دطالب استازو سره دراشې درشې پټ اړیکي لري نو بناءً هیڅ منطق نه لیدل کېږي چې گواکي دکندهار برید به طالبانو کړی وي

او ددینه هم قوي دلیل دادی که رښتیا طالبانو دکندهار دمیلمستون په کوچونو دومره چاودیدونکي توکي ځای په ځای کولی شول نوبیا یې ولې ددې فرصت نه په گټه په لوړپوړو امریکایانو داچاودنه نه کوله کوم چې هرسهار اوماښام په همدې میلمستون کې دکندهار دوالي اونورو سره مسلسل لیده کاته کوي چې دمتحده عربي په څېر دیو داسې هېواد سفیر او دیپلوماتان په نښه کوي چې هغوی په افغانستان کې خیریه کارونه کوی دافغانانو دسوکالۍ او خوشالۍ په هوډ راځي.

لیکنه : موسی فرهاد 15/01/2017




# د آزادی او BBC له ادرسه، پروپاګند څوک کوي ...؟!

په افغانستان کې د امریکا په مشرۍ د ناټو د الوتکو او ټانګونو په مټ رامنځ ته شوی ډیموکراټیک سیټ آپ ، د هغوی داسي یوه لاس ته راوړنه ګڼلي کیږي، چې بې شمېره لویدیځ پلوه رسنۍ یې په چوپړ لګیا دي ، ترڅو د تیري کوونکي ائتلاف دا لاسته راوړنه هدر ولاړه نشي. په دې لاره کې ترټولو مخکښ رول د بي بي سي ، آزدای ، امریکا غږ راډیویي ارګانونو دی، ځکه چې دا درې واړه غربیز، او په هغوی پوري تړلي ټول ارګانونه د امریکایي او برطانوي انګریزانو لخوا صرف د همدې مقصد لپاره تخلیق شوي دي .

کله چې شوروي اتحاد پر افغانستان یرغل وکړ برطانیې یې په وړاندي له بي بی سي نه پښتو او دري راډیویي خپروني په کال ۱۹۸۲م کې پیل کړې، له دې سره جوخت په همدې کال کې په واشنګټن کې د (VOA) وایس اف امیریکا له دستګاه نه د امریکا ږغ پښتو او دري نشرات دهمدې هدف لپاره پیل شول.

بیا چې کله په ۲۰۰۱م کال کې امریکا او ناټو پر افغانستان پوځي برید وکړ ؛ نو لویدیځوالو د خپل یرغل د توجیه او کامیابۍ په موخه دا راډیوګانو ته نوره هم وده ورکړه ، خپروني یې په ساعتونو ساعتونو زیاتي شولي، د دې ترڅنګ یې (د آزادي اروپا) له راډیویي دستګاه نه ؛ چې په کال ۱۹۶۷م کې د سي آی اې لخوا جوړه شوي وه ، او په مختلفو ژبو یې د شرقي کمونیزم پروړاندي او د غربي ډیمکراسۍ د بریا لپاره خپروني کولې ؛ له همدې ارګان نه یې د آزادۍ راډیو په نوم پښتو او دري ۱۲ ساعته نشرات پیل کړل. چې مرکزي ستوډیو یې د چیک هیواد په پراګ ښار کې ودانه ده .

**توپیر**

اوس خبره دا ده چې د روسانو د یرغل پرمهال هم همدا رسنۍ کارول کیدلي او د امریکایانو د یرغل پر مهال هم له همدې رسنیو نه کار اخیستل کیږي ؛ ښه نو د دوی ترمنځ توپیر څه دی ؟ ښکاره خبره ده چې دې رسنیو د روسانو د یرغل په مقابل کې یعني د هغوی پر ضد تبلیغات کول، ترڅو د هغوی یرغل ناروا وښیيي او هغوی ته شکست ورکړي ، ولي د امریکایانو د یرغل د تردید نه ، بلکي د توجیه لپاره یې پروپاګند کوي. چې ګویا د امریکا او ناټو یرغل د روسانو له هغه نه فرق لري ، دا د افغانانو د ګټې لپاره دی او هغه د افغانانو د نقصان لپاره وو . د هغوی (روسانو) په مقابل کې افغان مقاومت جهاد و ، اما د امریکایانو په مقابل کې د افغانانو جګړه جهاد نه، بلکي تروریزم دی. په بله اصطلاح د روسانو پرمهال دغو راډیوګانو د افغانانو لپاره خپلواکي دا ګڼله چې د روسانو له تیري نه وژغورل شي او وطن یې آزاد شي ، مګر د امریکایانو په دور کې بیا د افغانانو لپاره خپلواکي دا بولي چې د امریکا او ناټو تر چتر لاندي

ژوند ولري . که چیري امریکایان ورځخه ولاړ شي ؛ د افغانانو خپلواکي به له ګواښ سره مخ شي .....!؟! نو ویلای شو چې د دې رسنیو آساسي دنده همدا ده. او همدا یې د دوو یرغلونو په رابطه د تګلاري توپیر دی.

## خبریالان

اوس د ې کار لپاره چې د یادو راډیویي ارګانونو مالکان ، لویدیځوال د خپلي تبلیغاتي تګلاري لوری بدلوي ؛ دوی مجبور دي چې خبریالان هم څه نا څه په هغه روحیه خلک پیدا کړي چې د مادیاتو د ترلاسه کولو ترځنګ په انګیزه کې هم د خپلو سپانسرانو یا متوملینو سره همغږي ولري . ځکه چې په انګیزه چې څومره کار پرمخ ځي ؛ هغومره په بیخي ډېرو مادیاتو هم نشي تللای .

له همدې ځایه وه چې د بی بی سی ، امریکا ږغ او اوسنی آزادی راډیو کې د امریکایي اشغال د مهال خبریالان ، له هغو خبریالانو نه ډېر توپیر لري چې د روسانو پرمهال و . هغه مهال که څه هم د غربي راډیوګانو تبلیغاتي مبارزه په ظاهره د افغانانو د آزادۍ په ملاتړ، خو په حقیقت کې منافقانه وه ، مګر ډېری خبریالان یې ، چې افغانان ول ؛ بیا هم د وطن د آزادۍ انګیزه هم ورسره موجوده وه، چې وطن یې باید خپلواک او په ریښتیني ډول آزاد وي . مطلب دا چې که څه هم تول به نه وو ، أما اکثرو خبریالانو کې دا روحیه موجوده وه چې که له یوې خوا یې ژورنالیستیک مسلک د پیسو د ترلاسه کولو لپاره وو ؛ خو په څنګ کې یې د خپلي خاوري د استقلال او خپلواکۍ انګیزه هم لرله.

ولي د امریکایی یرغل پرمهال چې هرڅه په بل مخ واوښتل او د دې راډیوګانو تګلاره هم ۱۸۰ درجې تغیر شوه ؛ نو سمدلاسه یې خبریالانو هم تغیر وموند. مثلاً پخوا به په بی بی سي یا امریکا ږغ کې داسی ژورنالستان وو چې تعلیمي سویه به یې د پوهنتون د فروفیسورانو استاذانو وه ، ولی اوس اکثره داسی خلک استخدام شوي دي چې څو میاشتني کورسونه یې لوستي وي، د مخکنیو هغو په نسبت بې سواده ګڼل کیږي ، خو امتیاز یې فقط دا وي چې د یرغلګرو د برنامو د تعمیل لپاره هر ډول ژورنالیستک نورمونه تر پښو لاندي کوي.

د دې لپاره زه دلته څو کسان د بیلګې په توګه ذکر کوم . مثلاً د افغانستان د یو شاعر صدیق پسرلي زوی ایمل پسرلی چې تعلیمي سویه یې د ښوونځي د یو شاګرد سره هم برابره نه ده ؛ څو لنډمهالي کورسونه یي تعقیب کړي ، اوس په بی بی سي کې د افغانستان لپاره د پښتو څانګې مشر۔ ټاکل شوی دی . دا صرف په دې خاطر چې انګیزه یې د اشغالګرو سره موافقه ده . هغوی (غربیان) چې د بې بې سي په وسیله څه خپرول غواړي ؛ ایمل پسرلی او د ده هم فکران ترهغوی (غربیانو) هم څو قدمه وړاندي ځي .

دا راز په آزادی راډیو کې چې د پسرلي دوه نور زامن عصمت څاروان او اجمل پسرلی چې د احمد شبیر په نوم د آزادی خبریال دی ؛ دوی هم عین فکر لري چې د اشغال په لاره کې له اشغالګرو سره زیاته مرسته وکړي . همدا وجه ده چې بې تعلیمه او یا ډېر لږ تعلیم لرونکي ځوانان په یادو راډیوګانو کې د ډېرو مهمو اینکرفرسنانو پر منصب انتخاب شوي دي او هغه خلک چې د ژورنالیزم لوړي زدکړي لري ، خو د اشغالګرو سره د همغږۍ انګیزه یې کمزوري وي ؛ هغوی یا خو له دې راډیوګانو څخه بلکل ایستل شوي ، یا ورته داسی ځای ورکول شوی چې ورسره وړ نه وي .

دا ځکه چې له نوي امریکایی اشغال سره هغوی ته داسی کسان پکار وي لکه د صدیق پسرلي د کورنۍ وګړي چې هیڅ ډول ملي ، اسلامي او د خپلواکۍ مفکوره نلري ، یوازي د غرب ډالر او غربي کلچر ورته محترم وي . هغوی چې د تبلیغاتو په لاره کې هرډول برنامه ورته سپاري ؛ دوی یې تر هغه څو چنده په افراطي شکل تبلیغوي . همدا وجه ده چې نن سبا په افغانستان کې د بی بی سي امریکا ږغ هغه حیثیت پاتی نه دی چې پخوا یې درلودی . آزادی راډیو هم چې پخپلو اصولو کې د ناپییلتوب او د ژورنالیزم اصولو ته د پابندۍ دعوا لري ، ولی اوس د همدې ډول عقدوي ژورنالیستانو په وجه د یوې دروغجني او پروپیګنډه کوونکي راډیو حیثیت خپل کړی دی .

زه دا منم چې په یادو ارګانونو کې به د اشخاصو نظرونه ریښتیا هم ډېر ځای

نلـري ، بلکـي د حکومتونو لـه لـوري ورتـه پالیسي ټاکل کیـږي ؛ خو لـه دې حقیقتـه هم سترګي نشي پټیدای چې هـر خبریـال خصوصاً هغـه کسـان چـې د پروګرامونـو چلوونکي وي او د انګریـزي پـه اصـطلاح اینکرفرسنان وي ؛ د هغوی کـردار او فکـر ډېـر زیـات رول لـري . کـولای شي چـې د خپل فکر سره سم هغه څه په ډېـر مهـارت سره تبلیغ کړي؛ چې زړه يې غواړي .

## د پسرلي د زامنو عُقدوِي چلند

لکه مخکي مو چې یادونـه وکـړه، د پروپاګند او تبلیغاتو لپاره ، نـوي امریکـایی اشـغال تـه داسـی وګـړي پکـار وي لکـه د صـدیق پسرلـي د کـورنۍ سـیکولر فکـره خلک . چې هـیڅ ډول مـلي ، اسـلامي او د خپلـواکۍ مفکـوره نلـري، یـوازي د غـرب ډالر او غربي کلچر ورته محترم وي.

عصـمت ښاروان چـې پخـوا یـې د تهران راډیو پښتو سره خبریالي کوله ؛ خو د نـوي اشـغال پـه برکـت سره پـه آزادۍ راډیـو کـې مخکښ خبریـال مقرر شو او ورسره يې بل ورور احمد شبیر چې اصـلي نـوم یـې اجمـل پسرلـی دی ؛ هـم ورسره یوځای شو.

دوی چـې پـه آزادۍ راډیـو کـې د اشغال په حمایه او د جهـادي مقاومت پـه ضـد ښومره کوښښـونه کـوي ، ښومره یـو لوریز له پروپاګنده ډک راپورونه ، مرکې او برنامې خپروي ؛ دا که څه هم له یوې خـوا د آزادۍ د ټول راډیـویي ارګـان تګلاره هـم همدا ده ، خو د پسرلي د زامنو رول بیا ډېـر پکښې بارز او ځرګند دی . عصمت ښاروان

د آزادۍ راډیو د خبریالي ترڅنګ د تاند پـه نوم ویب پاڼه هم چلوي چې پیسې یـې لـه دوو لارو ترلاسه کوي، هم د ارګ له دفتره ، او هم د آزادۍ راډیو له ارګانه .

دوی شـپه او ورځ لګیـا وي چـې د جهـادي مقاومـت پـر ضـد پـه یـو خـاص عقدوي شکل بـې بنسټه او لـه ځانـه جـوړ شوي رپورټونه خپاره کړي. او د هغو موادو مخه نیسي‌ـ چې هغـه د مجاهـدینو پـه یـو نسبې ګټـه او د حکومـت پـه تـاوان وي . چې دا د مطبوعاتو په قانون کـې پروپاګنـد بلل کیږي او دا یو قـانوني جـرم دی . چـې یوځوک ځان د رسنیزو دیموکراتیکو اصولو پابنـد هـم ګڼـي او بیـا هـم، یـو لـوریز بـې بنسټه، دروغ او عقدوي راپورونه خپروي .

## دوه مثالونه:

۱ د طالبـانو ویانـد قـاري یوسـف احمدي وایی چې یو وخت پـه کنـدهار کـې سیمیزخبریال میرویس افغـان لـه مـا نـه د یوې جګړې په اړه راپور واخیست چـې پـه هغـه کـې حکـومتي لـوري تـه نقصـان رسیدلی وو ؛ دا راپـور لـه ښـه زیـات ځنډ وروسته خپـور سـو او هغـه هـم پـه بیخـي بدلـه بڼـه، نـو مـا یـې پـه اړه لـه میـرویس افغان څخه وپوښتل ؛ هغه راتـه وویـل : چې ایمـل پسرلـي یـې د خپرولـو اجازه نـه کوله ، ما ورسره جنجال وکړ چې کـه زه یـو لوریز راپورونه جوړوم نـو پـر مـا بانـدي بیـا اعتبارنه کیږي او ماته مشکلات جوړیږي ، بـالاخر پسـرلي پـه دې شرط اجازه راکـړه چې د طالبانو ادعا ورڅخه لیري کړم، او دا ټکي ځیني وباسه بیا یې خپور کړه .

نوموړی وایی چې میرویس افغـان راتـه وویـل : تـه خپلـه د ایمـل پسرلـي د تلیفون نمبر واخله او خبري ورسره وکړه . دی وایی چې ما ورته زنګ وواهه ځـان مـی وروپیژانـده ، ده سمدسـتي راتـه وویـل : خـدمت وایـه ، مـا د یـادي موضـوع یادونـه ورته وکړه چې دا خـو تاسـی پـه بـل شکل خپور کړی او دا خو ستاسي د بی بـی سي له اصولو هم خلاف دی ، ده فوراً را غبرګـه کـړه ، ښـه ! ترهګـر هـم مـوږ تـه اصـول رابښـیی . ؟! بیـا ماتـه زنـګ ونـه وهـي . تلیفون یی بند کړ .

۲ - ذبـیح الله مجاهـد د طالبـانو بـل ویاند کیسه کوي چې، څو ورځـي وړانـدي په آزادۍ راډیو کې یو تفصیلي راپور خپـور شو چې ویل یې د طالبـانو تـرمنځ پـر مـالي مسائلو ستر اختلافات رامنځ ته شوي دي. په راپور کـې داهـم ویـل شـوي وو چـې لـه طالب چارواکو سره مو د خبرو هڅه وکړه ؛ بریالي نشو . مجاهد زیاتوي چې راپور مـي له راډیو واوریدی چې له سره ترپایه مطلق دروغ وو ، سمدسـتي مـي د خپـروني پـه جریـان کـې د کابـل لـه سـتوډیو او بیـا د پراګ له مرکزي ستوډیو سره اړیکه ونیولـه ، چې ټلیفون به یې اوچـت کـړ لـه پیژنـدلو وروسته به یې فوراً ټلیفـون قطـع کـړ. څـو څو ځله مې دا هڅه وکړه ، دوی به ټلیفـون راباندي قطع کړ .

مجاهد وایي چې ما غوښتل دوی تـه ووایـم چـې تاسـو ولي پـه دروغـو داسـی راپورونه خپروئ ، چې هیڅ حقیقـت نلـري ، په اړه یې له موږ پوښتنه هم نـه کـوئ او بیا په عـین حـال کـې وایاسـت هـم چـې د

طالبانو له ویاند سره مو اړیکه ونیوله ، هغه د دې مسئلې په اړه څه ونه ویل .

## تاند

د پسرلیانو پروپیګنډه او د دوی عُقدوي کردار یوازي تر آزادۍ او بی بي سي پوري محدود نه دی ، بلکې عصمت ځاروان د تاند په نوم یوه ویب پاڼه هم چلوي چې فقط او فقط پروپاګند او دروغجن تبلیغات پکي کوي . د دې پاڼي د لیکلو لپاره یې د مجید کراري ، سقیمشاه ، قانې ، حلیم شمیزی، وهاج ، غفور فیروز ، پلان او پلان او داسي نور... اکثریت سیکولراو بې دینه ځوانان راټول کړي وي چې له هرډول ملي ، اسلامي او اخلاقي قیوداتو څخه آزاد دي .

یاد کسان چې په خواله رسنۍ او سرخط ښکنځل پاڼه کې هم د کمونیست حنیف اتمر له آخوره، خوراک کوي ؛ دا راز د صدیق پسرلي د زامنو (ایمل، عصمت، اجمل او بل پسرلي) د تاند په استخباراتي پروژه کې هم ځکول کیږي .

د تاند پروژه پر دې سربېره چې د طالبانو سره عقیدوي او سیاسي مخالفت لري ، په هغوی پسې پروپیګنډه کوي ؛ بله پالیسي یې دا ده چې فقط د اشغال او د غني د ارګ دفاع کوي . د دې دوو چې هرڅوک مخالفت کوي ؛ دوی یې ټکوي ، همدا وجه ده چې په دویم باچا ډېل عبدالله پسي هم خبري کوي ، د پارلمان په هغو کسانو پسې هم بد وایي چې د غني ارګ باندي اعتراضونه کوي ، او اوس چې دوستم د غني مخالف شوی ، هغه هم جګړه مار بولي په داسي حال کې چې تراوسه یې لومړی مرستیال ولسمشر باله ، که څه هم په شمال کې یې د پښتنو قتل عام پیل کړی و. دوی ورته بد نه ویل ، خو اوس چې غني ورڅخه ناراضه دی ، او په عین وخت کې یې امریکایان هم ښه نه ګڼي نو تاندوالو ورپسی بد رد پیل کړي .

په هرحال دا خو یوه ویبپاڼه ده ، نه یې دومره څوک پیژني او نه دومره اثر لرلای شي ، د ځلویښتو کفري ملکونو پوځونو او په زرهاوو تبلیغاتي چینلونو چې د طالبانو مقاومت اغیزمن نه کړای شو نو د پسرلیانو یوه پاڼه به څه وکړای شي .

خو خبره دا ده چې د آزادۍ او بی بی سي ځېنې نه باید د داسي اشخاصو د شخصيې عقدو لپاره وکارول شي چې هغوی یی حیثیت لا ورپسي زیانمن کړي . بی بی سی چې یو ډېر ښه ځای یې په افغانانو کې درلودی ، خو اوس یو څه د خپلو ناکاره پالیسیو له وجي او بل د داسي ناکاره اشخاصو لکه ایمل پسرلی و امثاله... له امله یې هغه مقام او حیثیت بلکل له لاسه ورکړی دی.

او دا نه یوازي بی بی سی او آزادۍ ده ، بلکي ډیری رسنۍ له همداسي مشکل سره مخ دي چې د څو افرادو له لاسه یې د دروغجني او پروپاګند کوونکي رسنۍ حیثیت خپل کړی دي.

دا حقیقت خبریالانو ته خپله هم مالوم دی ، یو افغان خبریال (محمد کمال افغان) په خپله یوه اورده مقاله کې چې [ دروغجنه میډیا ] یې نوم دی ؛ داسی لیکي :

( زه یو افغان خبریال یم، زمونږ (۲٤) ساعته لالهانده ژوند، هڅې، منډې تربې، ذهني او فزیکي فشارونه راباندي تیریږي ، مالي لګښتونه کوو، بالاخره په ټولنه کې خلک راته د دروغجن خبریالانو او دروغجني میډیا خطاب کوي . حتی اکثره خلک له رسنیو سره خبرو کولو ته نه حاضرېږي، دوی وای موږ چې څه وایو ، بیایې هغسې نه نشروئ. یا وایې، زمونږ خبرې ځای نه نیسي او داسې نور بېلا بېل دلایل وایې. کله نا کله خو مونږ ته نیغ په نیغه وایې، تاسې ټول دروغ وایاست! . نو له دومره کړاونو سره سره هغه متل دی وایې، (هندو سترې خدای نا راضه) .

زه د دوی خبرې، ګیلې او اندېښنې پر ځای بولم، دا منم، چې ځینې رسنۍ او خبریالان لیوه د پسه په پوست ننوتلی وي، خو دا په دې مانا نه، چې ګواکې ټول خبریالان او رسنۍ کاذبې دي. ټولو ته په یوه سترګه مه ګورئ! د یو لاس پنځه ګوتې برابرې نه دي. ټول خبریالان او رسنۍ دروغجنې نه دي. ټولو رسنیو او خبریالانو ته دروغجن او دروغجنه میډیا مه وایئ! هر څوک پوهېږي، چې غوا توره او شیدې یې سپینې.)

پای ...!



# تصویب قطعنامه بر ضد اسرائیل

# چه سودی دارد ؟

اسرائیل پسر نا مشروع و لیکن نازدانه و نور چشم اروپا و امریکا است ، به ویژه امریکا در ۵۰ سال گذشته همواره از اسرائیل کورکورانه پشتیبانی نموده است و در هر مشکل دوشادوش اسرائیل قرار گرفته است ، امریکا در طی ۵ دهه برای همگان روشن ساخته است که برای همکاری و پشتیبانی از اسرائیل آماده‌ء هر گام است ، اما درین روزها روابط امریکا و اسرائیل به دلیل یک قطعنامه مخدوش گردیده است ، بلی ، قطعنامهٔ که چند روز پیش در شورای امنیت ملل متحد بر ضد اسرائیل به تصویب رسید ، اسرائیل از امریکا شکوه دارد که چرا این قطعنامه را همچون بارهای پیشین وتو نکرد .

در شورای امنیت سازمان ملل متحد ۵ کشور اعضاء دائمی هستند و حق وتو دارند ، هر یکی ازین کشورها ( امریکا ، فرانسه ، انگلستان ، روسیه و چین ) می توانند تا پیش نویس را که از سوی بیشتر کشورهای جهان تایید شده باشد و یا قطعنامهٔ را که از سوی بیشتر اعضاء شورای امنیت رای مثبت گرفته باشد رد نمایند ، در ۷۰ سال گذشته ( ۱۹۴۶-۲۰۱۶م ) ۲۳۷ بار پیش نویس های ملل متحد و قطعنامه های شورای امنیت از سوی یکی ازین کشورها وتو گردیده است ، روسیه ۱۰۴ بار ، امریکا ۷۹ بار ، انگلیس ۲۹ بار ، فرانسه ۱۶ بار و چین ۹ بار از حق وتو استفاده کرده است .

امریکا که با ۷۹ وتو در جایگاه دوم قرار دارد ۴۱ بار یا در مخالفت با فلسطین و یا برای پشتیبانی از اسرائیل از حق وتو کار گرفته است ، امریکا پس از سال ۲۰۰۱م ۱۳ مرتبه قطعنامه های ضد اسرائیل را وتو کرده است ، از سال ۱۹۸۹م تا ۲۰۰۴م در مجموع ۱۹ بار از حق وتو کار گرفته شد ، امریکا با ۱۳ وتو از همه پیشگام بود و ۱۱ وتوی امریکا تنها برای پشتیبانی از اسرائیل بود ، در مورد شورای امنیت گفته می شود که وظیفهٔ پاسداری از امنیت و صلح بین المللی را به عهده دارد و لیکن آمار فوق نشان می دهد که پشتیبانی از اسرائیل نخستین و عمده ترین وظیفهٔ این شوری است ، حتی گفته می شود که اسرائیل به صورت غیر رسمی دارای حق وتو در شورای امنیت است .

در سطور فوق نوشته شده بود که امریکا از اسرائیل کورکورانه پشتیبانی نموده است ، در ذیل شماری از وتوهای امریکا در حق اسرائیل را تذکر می دهیم که این واقعیت را روشن تر می سازد ، روند پشتیبانی امریکا از اسرائیل در شورای امنیت از سال ۱۹۷۲م آغاز گردید ، زمانی که امریکا نخستین بار قطعنامه‌ء ضد اسرائیل را وتو نمود ، دران قطعنامه اسرائیل به دلیل کشتار صدها تن غیرنظامیان در طی حملات هوایی بر سوریه و لبنان تقبیح شده بود ، امریکا در سالهای ۱۹۷۸م و ۱۹۸۰ دو قطعنامه‌ء دیگر را نیز وتو نمود ، درین قطعنامه ها گفته شده بود که شرایط زندگی فلسطینیان قابل قبول نیست ( گویا وضعیت زندگی مردم فلسطین از دیدگاه امریکا تسلی بخش بود ) ، در سال ۱۹۷۹م یک قطعنامه که خواهان همکاری با مردم فلسطین بود نیز از سوی امریکا وتو شد ( گویا از دیدگاه امریکای ها نیازی به همکاری ها با مردم فلسطین نبود ) ، در سال ۱۹۸۶م در یک قطعنامه از اسرائیل خواسته شد که به اماکن مذهبی مسلمانان احترام بگذارد ، اما امریکا این قطعنامه را نیز وتو کرد ( گویا اهانت

اسرائیل به مقدسات مسلمان ها از دیدگاه امریکا قابل تشویش نبود ) ، امریکا در سال ۱۹۸۷م یک قطعنامهء دیگری را وتو نمود ، دران قطعنامه از اسرائیل خواسته شده بود که مردم فلسطین را از منازل شان بیرون نکند . وتوهای فوق الذکر نشان می دهد که امریکا به هیچ دلیل نمی خواهد اسرائیل حتی تقبیح شود ، چه جای که مؤاخذه و تهدید شود .

اما چیزی که روز پنجشنبه ۲۲ دسمبر ۲۰۱۶م به وقوع پیوست بر خلاف عملکرد سه دهۀ اخیر امریکا بود ، قطعنامه را که مصر پیشنهاد و نیوزلند ، مالزی ، ونزوئلا و سنگال حمایت کرده بودند درین روز برای رای گیری به شورای امنیت ملل متحد پیش شد ، درین قطعنامه از اسرائیل خواسته شده است که از اعمار شهرک های جدید در سرزمین اشغالی فلسطین به ویژه قدس شرقی منصرف گردد ، بنیامین نتنیاهو نخست وزیر اسرائیل چند ساعت پیش از رای گیری در تویتر نوشت که امریکا باید قطعنامۀ ضد اسرائیل را وتو کند ، متعاقباً دونالد ترامپ رئیس جمهور جدید امریکا نیز از دولت اوباما خواست تا این قطعنامه را وتو نموده از دولت اسرائیل حمایت بکند ، قابل ذکر است که امریکا در سال ۲۰۱۱م قطعنامۀ را که دران شهرک سازی های اسرائیل محکوم شده بود وتو کرده بود ، اما این بار امریکا از وتو خود داری نمود و قطعنامه با ۱۴ رای موافق و ۱ رای ممتنع به تصویب رسید ( رای ممتنع از امریکا بود ) ، پس از ۳۷ سال این نخستین بار بود که یک قطعنامه بر ضد اسرائیل به تصویب رسید .

اسرائیل تصویب این قطعنامه را شرم آور خوانده و گفته است که مندرجات آن را نمی پذیرد ، پرسش اینست که آیا جامعۀ جهانی به ویژه امریکا پس از تصویب این قطعنامه در راه شهرک سازی های اسرائیل موانع ایجاد خواهند کرد و آیا ادامۀ شهرک سازی ها در فلسطین نقض آشکار قوانین بین المللی پنداشته خواهد شد ؟ ، لا اقل امریکا هرگز آماده نیست تا درین راستا بر اسرائیل فشار وارد کند ، زیرا امریکا گرچه این قطعنامه را وتو نکرده است و لیکن سفیر امریکا در شورای امنیت ملاحظات خود را درین رابطه ابراز نمود که گویا پروژه های شهرک سازی اسرائیل چندان مشکل مهم نیست و جهان باید به قضایای مهم تر ازان متوجه گردد ، وزیر خارجۀ امریکا جان کیری گفته است که امریکا با وجود اختلافات اخیر نزدیک ترین متحد اسرائیل باقی می ماند ، دیوید فریدمن سفیر نومنتخب ترامپ برای اسرائیل علناً ابراز نمود که فعالیت های شهرک سازی اسرائیل غیر قانونی نیست ، مهم تر از همه اینست که دوناld ترامپ در تویتر نوشت : اسرائیل قوی باش ، ۲۰ جنوری به زودی می آید ( گویا این همه مشکلات با آمدن من برداشته می شود ) ، نتنیاهو نیز از حمایت ترامپ ستایش کرد و از دوستی گرم و حمایت قاطعانه اش از اسرائیل تشکر نمود .

بلی ، اسرائیل اسرائیل است ، پسر نا مشروع و لیکن نازدانه و نور چشم ، نه تنها امریکا بلکه کشورهای مقتدر اروپا همواره با اسرائیل همکاری نموده اند و اسرائیل را بخش پیکر خود پنداشته اند ، موقف گیری های سیاسی و روابط اقتصادی کشورهای اروپای در بحران اسرائیل - فلسطین عمدتاً به سوی اسرائیل متمایل بوده است ، دیوید کرونین کتابی را به نام ( اتحاد اروپا و رژیم صهیونیستی : حمایت از اشغال فلسطین ) به چاپ رسانیده است ، وی در یک مصاحبه می گوید : اسرائیل خوی و بوی تروریستی دارد و اروپا را مسئول حمایت مالی خود در اشغال فلسطین معرفی می کند و درین مورد از هیچ نقدی باک و هراس ندارد ، وی می افزاید : با شرکت در یک کنفرانس در بروکسل در سال ۲۰۰۷م شاهد روابط نزدیک اتحادیه اروپا و اسرائیل بودم و متوجه شدم که عمق فاجعه بیشتر از آنست که تصور می کردم و دستهای اروپا و اسرائیل از مدت های پیش به هم گره خورده اند ، وی در پاسخ به یک سوال می گوید : سرپرست سیاست خارجی اتحاد اروپا کاترین اشتون در پایان سال ۲۰۱۰م اظهار نمود : اسرائیل باید تلاش های خود را برای گسترش روابط با اروپا تشدید بخشد ، این اظهار اشتون حکایت می کند که اسرائیل در روابط خارجی اروپا هم پایۀ چین و امریکا قرار گرفته است .

# ګلځونه

## غزل

**سراج**

ګودرمو شاړه بيامنګی نه لري
ځوک چې پرې نه ژاړي زړګی نه لري

داچې مزارد شهيد خړبنکار بېږي
جنډې بې نشته اولګی نه لري

هغوي چې ځان بې اسلحې بولي لا
لکه چې لوراوتبرګی نه لري

دابعضې خلک دومره کبرکوي
ته به وانه مري اومرګی نه لري

هغوي هېرنه کړې دماښوخانه!
چې لابې کوره دي کورګی نه لري

شپه هم تياره ده اوداغرهم عجيب
ګړنګ ګړنګ ده اوتنګی نه لري

مينه له يوزړه نه په بل زړه شنه شي
چاويل دګل ونه نيالګی نه لري

د"سراج"زړه باندې اورونه بل دي
داسې اورونه چې لوګی نه لري

## مدرسه

شاعر: ملامحمدعليم بسمل

دمولا له نوره بلي دي ډيوي دمدرسو
هيڅ قوت وژلی نه شي ستاري دمدرسو
داجهان به معطر کاندي ورمې دمدرسو
وې دې خاصي بندي مه شه دروازي دمدرسو

هغوی توري جوړي کړي مونږه زغري جوړه وو
نه ټانګونه جوړه وو اونه لانچري جوړه وو
دنياوي علوم دې خدای کاندي په تاسو مبارک
مونږ دخدای پاک عرش دزړونوله ډبري جوړه وو
نه په چا باندي بمبار کړواونه وژنو انسانان
نه اټم جوړه وو نه هيلي کاپټري جوړه وو
انسانيت جوړه وي خلکو کارخانې د مدرسو
وې دې خلاصي بندي مه شه دروازي دمدرسو

ترقي دې تا محدوده ددنيا تر زندګي
پرمختګ زمونږه پس له مرګه هم دوام لري
بس داغواړو چې په هرقدم شوخدای ته ورنزدې
او خپل ځان خاوري کوو له نفسه اخلو ازادي
په جنت کې هم په مخ ځو درجه په درجه
تر ځو پوري ترلاسه کړوو ديدن يې الهي
تر مولا مو رسا وای شي پريښتي دمدرسو
وي دې خلاصي بندي مه شه دروازي دمدرسو

دا منو چې ترسپوږمې پوري دې وکړه ترقي
خوتياره دې کړله زياته رادې نه وړه رڼايي
ټول ملې خاينان تاته ښه مالوم دي ای نړې
نه يې ويلي مدرسه ده نه قران نه بخاري
نړی وال جنګونه چا وکړل ملا ووا وکه پير
نعمان وکړه مالک وه که احمد که شافعي؟
نه ټپوس لري نه زاغ ښکلي باغچې دمدرسو
وي دې خلاصي بندي مه شه دروازي دمدرسو

په بوستان دمدرسو کې راټوک کيږي نه اغزي
يابه شاه ولي الله وي يا امام غزالي
چې ملت ته يې ډالی کړ عالمګير غوندي باچا
مدرسي دی زيږولی مجدد الف ثاني
شيخ الهند وه چې پيدا يې کړه په هندکې شاګردان
وو دهر سړي ابروو حسين احمد يې مدني
عالمان محمد عليمه دي شملي دمدرسو
وي دې خلاصي بندي مه شه دروازي دمدرسو

# غزل

محمد نعیم افغانزوی

اوروه یـــې زمـــا دې بـــم تـــه ســـینه ســـپر ده
زمـــا بـــې ســـپره هـــر ســـتم تـــه ســـینه ســـپر ده

اوس لـــه غـــم سره اشـــنا یمـــه عـــادت یـــم
مـــا نیـــولې هـــر یـــو غـــم تـــه ســـینه ســـپر ده

د ظلمونـــو خـــو پېـــږۍ مـــې وګـــاللې
تـــا راکـــړی مـــا مـــاتم تـــه ســـینه ســـپر ده

هـــر فرېـــب دې مـــاتوم ورنـــه آګـــاه شـــوم
ځکـــه تـــل مـــې ســـتا هـــر چـــم تـــه ســـینه ســـپر ده

پـــه بـــاروتو کـــې پوښـــلی درتـــه ګـــرزم
تـــل مـــې ســـتا زهـــري ایـــتم تـــه ســـینه ســـپر ده

لـــه هـــر ګـــام سره دې اوس یـــم بلـــد شـــوی
تـــه یـــې وړه زمـــا دې قـــدم تـــه ســـینه ســـپر ده

پـــه مـــا نکـــړي اوس اثـــر دا ســـتا منـــترې
مـــا د ســـحر هـــر رقـــم تـــه ســـینه ســـپر ده

افغـــان زوی کـــوم دفـــاع پـــه قلـــم تـــوره
زمـــا دا ســـتا باطـــل قلـــم تـــه ســـینه ســـپر ده

## هر ملك ملك ماست
## كه ملك خدای ماست

گوینـد چـون طـارق وارد اسـپانیا شـد بـرای تشـجیع مسلمانان برای جنگ با مسیحیان دستور داد که کشتی های مسلمانان را بسوزانند. وقتـی بـه او اعـتراض کردنـد گفت:این نبرد جنگ سرنوشت اسـت و وطـن مـا همـین جاست.

اقبال لاهـوری ایـن داستان را بـه ایـن نحـو بیـان کـرده است:

طـارق چـو بـر کنـاره انـدلس سـفینه سـوخت
گفتنـــد کـــار تـــو ز نگـــاه خـــرد خطاســـت

دوریـــم ز ســـواد وطـــن بـــاز چـــون رســـیم؟
تـــرک ســـبب ز روی شریعـــت کجـــا رواســـت؟

خندیـد و دسـت خـویش بـه شمشـیر بـرد و گفـت
هـر ملـک ملـک ماسـت کـه ملـک خـدای ماسـت

**حضرت عائشه صدیقه** رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا **فرمائي-:**

- ✓ د میلمه په ویاړ ډېر لګښت په اسراف کې نه راځي.
- ✓ لږ خواړه درنځونو دوا او په ډکه خیټه خواړه د ناروغیو مور ده.
- ✓ دسراغ له رڼا نه ګټه واخلئ او دې ته مه ګورئ چې د چا په لاس کې دی.
- ✓ د ژبې ساتنه ثواب دی.
- ✓ ستاسو لپاره د خیر خبره همغه ده، چې له شره ځان وساتئ.

لیکوال: نصیب ځدراڼ

# د شهید مولوي سنګین فاتح

## ژوند او کارنامو ته کتنه

### پېژندنه

شهید مولوي سنګین فاتح د حاجي مرسلین زوی په قوم ځدراڼ، د پکتیکا ولایت زیروک ولسوالۍ د تنګي د کلي اوسیدونکی و.

مولوي صاحب په ۱۹۷۴ کال د هجرت په دیار شمالي وزیرستان دته خیلو سیمه کې پیدا شوی و چې په پنځو وروڼو کې تر ټولو مشر و .

### لومړنی ژوند او تعلیم

ملا سنګین لومړنۍ زدکړې د شمالي وزیرستان همزوني کلي کې د مولوي حبیب الرحمن صاحب نه پیل کړې، د لوړو دیني زدکړو لپاره د ستر مجاهد مولوی جلال الدین حقاني صاحب مدرسې منبع العلوم ته لاړ. نوموړی په دې وخت کې زلمی و، د جهاد او وطن سره یې ډیره مینه درلودله، د طالبانو د اسلامي امارت د واکمنۍ پر مهال به یې د درسونو د رخصتیو نه په استفاده د شراو فساد د عناصرو په ضد جهاد کې برخه اخیستله.

وړه او لویه دوره یې په مدرسه (جامعة العلوم السلامیه زرګری) کې له شیخ الحدیث مولوي عبدالستار جان رحمه الله او شیخ مولوي سیف الله صاحب څخه ولوستله او په ۲۰۰۵ کې یې د فراغت پګړۍ وتړله.

### د صلیبیانو په ضد جهاد

کله چې صلیبي وحشي ځواکونو په ګران وطن افغانستان یرغل وکړ، د خلکو په ذهنونو کې د دوی د ټیکنالوژي، قوت او زندان رعب و؛ په هغه وخت کې شهید مولوي سنګین فاتح د اسلامي امارت له طرفه د مولوي جلال الدین حقاني صاحب په جبهاتو کې په پکتیکا کې د یوه نظامي مسؤل په حیث وټاکل شو.

مولوي صیب د لومړنیو مجاهدینو څخه و چا چې په کمزورو وسایلو په خوست او پکتیکا ولایتونو کې د یرغلګرو په اکمالاتي کاروانونو او د دوی په پوځي مراکزو ځپونکي بریدونه پیل کړل .

### یو قومي مشر او د عوامو د خوښې قومندان:

نوموړي د نظامي پوهې او مسلکي توب تر څنګ د ولسي۔ قضایاوو او د هغوی د منازعاتو په حل او فصل کې خاص مهارت درلود .

مولوي سنګین (فاتح) سره له دې چې د جګړې په مورچل کې یو باتور قومندان و خو له ولسي خلکو او خپلو ملګرو سره یې د یوه صمیمي دوست او خواخوږي ورور په حیث چلند درلود.

شهید مولوي سنګین د مجاهدینو په پوځي او اخلاقي تربیه کې ډېر کوښښ کاوه او د نظامي عملیاتو د تر سره کولو په مهال به یې د ولسي۔ خلکو د سر او مال خاصه پاملرنه کوله .

## صفات او خویونه یې:

تقوی، دیانت او په نبوي سنتو تمسک یې طبیعي خاصه او له تظاهر او ریاکاري څخه یې کرکه کېدله او د خپلو ملگرو تر څنگ د دښمن عسکرو هم مولوي صاحب ته لوړ احترام درلود

## په لومړي ځل د امریکایي عسکر بندي کیدل

شهید مولوي سنگین (فاتح) هغه بریالی قومندان و چې د پکتیکا ولایت د مسؤلیت په مهال دده تر امر لاندې د قاري اسمعیل صاحب د ډلگۍ مجاهدینو په ۲۰۰۹ کال کې د پکتیکا په ولایت کې امریکایي افسر بوبریگدال له وسلې سره د امریکایي اډې له څو مترۍ څخه ژوندی اسیر کړ . د بوبرگډال نیول کیدل او بیا د هغه په محفوظ شکل ساتل چې په پای کې وربانديې د اسلامي امارت او امریکا تر منځ تاریخي تبادله وشوه په پکتیکا کې د شهید مولوي سنگین د مسؤلیت د مهال یوه تاریخي پیښه وه .مشهور لیکوال او د سیاسي چارو شنونکي وحید مژده په خپلې یوې مقالې کې د مجاهدینو په لاس د دغه امریکایي افسر د اسارت قصه داسې لیکي :

کله چې برگډال د ۲۰۰۹ میلادي کال د جون په دېرشمه د پکتیکا د یوسف خېلو په ولسوالۍ کې له خپل مرکز نه وتلی و طالبانو ونیو. د نیول کېدو پر مهال ورسره یو M۱٦ ټوپک و ( خو که یې له دغه ټوپک څخه کار اخیستی وای، حتماً به وژل شوی و )

د بریگډال د نیولو او موندلو لپاره، امریکایانو په پکتیا، پکتیکا او د غزني په اندړو او نورو ډیرو ولسوالیو کې پراخ عملیات ترسره کړل، همدا رنگه د ده د ساتنې د ځای په اړه یې د معلوماتو پیدا کولو له پاره د جائزې وعده هم وکړه، خو طالبانو دی د امریکایانو له لاس رسي څخه لرې ځای کې ساتلی وو.

د طالبانو په روایت مولوي سنگین ځدران چې هغه وخت د پکتیکا نظامي مسؤل و- برگډال یې د یوه بوډا کور ته بوته او هغه ته یې وویل :

"کاکا ! پام پرې لره چې دا سړی درنه ونه تښتي. زه ډېری وخت بوخت یم نو تا ته یې درسپارم"

بوډا له ځان سره فکر وکړ چې دا سړی خو د تېښتې لار نه لري. که له کوره ووځي، نو چېرته به لاړ شي؟ نو نه یې لاس ته زولنې ور اچولې  او نه یې پښې ورتړلې، خو بریگډال وېرېده. هغه په دې اندېښنه کې و چې طالبان به یې ژر تعذیب کړي، یا به یې سر پرې کړي او ویډیو به یې خپره کړي، په داسې حال کې چې طالبان د دغه اسیر په ارزښت پوه ول او هېڅکله یې داسې اراده نه لرله. برگډال د تېښتې لار لټوله، د همدې لپاره به چې کله بوډا ورته ډوډۍ راوړه، ده به لږه لږه پټه ساتله. تر دې چې یوه ورځ بوډا اودس ته د باندې ووت، برگډال هم له کوره نه راووت او ورک شو. برگډال چې خپل نظامي کالي بدل کړي وو او ځایي کالي یې په تن وو، پرته له دې چې څوک پرې پوه شي یا ورته ځیر شي، ډېر ژر د کلي له بازاره ووتلی او د کلي نه لرې ځنگل او غره ته یې ځان ورساوه. بوډا چې کله د اسیر له تېښتې خبر شو، طالبان یې خبر کړل. طالبان درې ورځې ورپسې گرځېدل، بالآخره کلي ته څېرمه سیمه کې یې یو وار بیا ونیو .

اوس بریگډال پوی شوی وو چې د تېښتې لار نه شته، نو باید نوی حالت رامنځ ته کړي. همدغه امریکایي عسکر بریگډال و چې وروسته په تبادله کې یې هغه ۵ طالب مشران امریکایانو د گوانتامو نه راخلاص کړل څوک چې د لس او دولس کاله د  گوانتنامو په زندان کې بندیان وو.

## د دښمن په ضد کامیاب عملیات:

د مولوی سنگین صاحب تر قوماندې لاندې په ۲۰۰٦ کال کې مجاهدینو د پکتیکا نکې په ولسوالۍ تعرض وکړ او په مکمله توگه یې فتحه کړه .

امریکایانو او اجیرانو یې څو وار کوشش وکړ چې په ولسوالۍ برید وکړي او بیرته یې ونیسي خو د مولوي صاحب د ملګرو له طرفه د سخت غبرګون سره مخامخ شول او ماته به یې وخوړله، د نکې ولسوالۍ تر اوسه پورې د اسلامي امارت د مجاهدینو تر ولکې لاندې ده .

د اتل سنګین تر قوماندې لاندې مجاهدینو د پکتیکا ولایت د ګیان ولسوالۍ ودانۍ او ورسره نږدې د امریکایانو او ځانګړو ځواکونو په ګډ کمپاین باندې تعرض وکړ او د سخت جنګ نه وروسته یې دواړه مرکزونه فتحه کړل چې د ګیان ولسوالۍ تر اوسه د مجاهدینو په لاس کې ده .

د ګیان ولسوالۍ پورې مربوط د لواړه په سیمه کې د امریکایانو په کمپاین یې مسلسل بریدونه وکړل په اکمالاتی کاروانونو یې دوامداره کمینونه ووهل چې بالاخره امریکایان مجبور شول د لواړه کمپاین پریږدي .

د پکتیکا ولایت د چاربران په ولسوالۍ د مولوي سنګین تر قوماندې لاندې مجاهدینو تعرض وکړ او ولسوالۍ یې مکمله فتحه کړه چې لله الحمد تر نن ورځې پورې د اسلامي امارت سپین بیرغ ورباندې رپاند دی .

د منظم پلان له مخې د پکتیکا زیړوک ولسوالۍ په ودانۍ باندې اول د موټر بم برید او وروسته پراخ تعرض هم د مولوي صاحب له طرفه ترتیب شوی وو چې په نتیجه کې یې بې شمېره امریکایانو ژوند د لاسه ورکړ .

د اتل سنګین نور بې شمېره څېونکي او بریالي عملیات چې د دښمن په وړاندې یې ترسره کړي دي چې دلته یې پدې لنډه لیکنه کې ځایول ناممکن دي.

## په جهادي مزل کې زخمی کیدل:

مولوی صیب په جهادی مزل کې دوه واره ټپي هم شو ،یو وار د پکتیکا ولایت اورګون ولسوالۍ مربوط ګربګي کنډو سیمه(اوس د شهیدانو په کنډو یادیګی) کې امریکایانو بمبار ورباندې وکړ د مولوی صیب څلویښت ملګری شهیدان شول او مولوی صیب سخت زخمی شو،سانحه لویه وه خو دومره نه چې د مولوی صیب حوصله یې ماته کړي وی،مولوی صیب بیا روغ شو او د یرغلګرو انګریزانو په ضد جهاد ته یې دوام ورکړ،

کله یې چې په میرانشاه بازار کې په شرخوښو او غلو باندې عملیات پیل کړل نو مولوی صیب د هر وار غوندې تر ټولو مخکې جنګیدو او په همدغو عملیاتو کې په مرمۍ ولګیدو خو الله تعالی د خپل دین د خدمت لپاره ژوندی وساتو.

## شهادت:

امریکایان د اتل مولوي سنګین د کامیابو عملیاتو نه ډیر تنګ شوي وو همدا علت وو چې په ۲۰۱۱ کال کې یې مولوي صیب په تور لیست کې شامل کړ، دغه د خدای د لارې سرښندونکی مجاهد او د دعوت د لارې ستر داعي د ۲۰۱۳ میلادي کال د سیپتمبر د میاشتې په نهمه نېټه په شمالي وزیرستان کې امریکایي بې پیلوټه الوتکې د یوه ملګري په حجره کې په نښه کړ، د صلیبیانو قاتل، د پکتیکا د غرونو زمری، د مجاهدینو او عوامو محبوب مشر، شمله ور ځوان مولوي سنګین فاتح په شهادت ورسید او د تل لپاره د ابدي ژوند په لور رخصت شو. انالله وانا الیه راجعون

مولوي صیب د خپل پلار اولنی او آخرنی شهید زوی نه وو بلکې د مولوی صیب نه مخکې د مولوي صیب ورور عبدالوارث 'حیدری' د پکتیکا ولایت په زیړوک ولسوالۍ کې د امریکایانو سره په مخامخ جنګ کې شهید شوی و او د مولوي صیب د شهادت نه وروسته یې بل ورور محمد فاروق په جنوبي وزیرستان کې د پاکستاني پوځیان په لاس په شهادت ورسیدو.

روح دې ښاد او یاد دې یې تل ژوندی وي

د صلیبیانو لوی قاتل

# شهید حافظ بدرالدین حقاني

## ژوند او کارنامو ته کتنه

لیکوال:نصیب ځدراڼ

### زوکــړه

هغــه وخــت چــې د روســي لښــکرو پــه خــلاف د افغــان ولــس ویاړمنه مبارزه روانـه وه، د جـلال الــدین حقــاني پــه کــور کــې د ۱۴۰۶هـ ق کال د رمضان المبارک په اول تاریخ دنیا ته د بدرالـدین د راتګ زیری وشو .

بدرالــدین د مولــوی جــلال الدین حقاني(حفظه الله) زوی پـه قوم ځدراڼ د پکتیا ولایت ګـردې ځیړې ولسوالۍ سرانې کنډو کلي اوسیدونکی و.

### زدکړې او لومړنی ژوند

بدرالـدین ۱۰ کلـن وو چـې د قرآن کریم حفظ یې مکمل کړ.

د امـارت اسـلامي د واکمنــۍ پر مهال یې پـه خصوصي ډول لـه خپـل والـد صـیب څخـه ځینــې کتابونه ولوستل تر دې چې د علم مزل یې د وړې دورې (موقوف علیه) درجې پورې ورساوه .

بدرالدین د ځانګړې علمي ذکاوت څښتن و، له همدې امله به حقـاني صیب بدرالدین د خپل ځان ځای ناستی باله.

حقاني صیب به بدرالدین ته ویل، زما په کورنۍ کې به له مـا څخـه وروسـته د دیني علم ډیوه ته بله ساتې، زما ستره کتابخانه به تاته پاتې کیږي او ته بـه یـې پالنه کوې، زما مدرسه به ته فعاله ساتې او ته به یې خدمت کوې ...

عصري زدکړې یې هم تر شپږم ټولګي پورې کړې وې.

### د جهاد پیل

په ۲۰۰۱ کال د اکتوبر په اومه نیټه زمونږ په ګـران هیـواد د امریکایـانو پـوځي یرغل د بدرالدین حقاني علمي سفر په جهادی سفر بدل کړ او علمي زده کړې یې نیمګړې پاتې شوې.

مولـوی جـلال الـدین حقـاني د امریکـي د یرغـل نـه وروسـته یـو ځـل بیـا د امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد تر قوماندې لانـدې د خپلـو بچیـانو او ملګـرو سره یو ځای د حقانیت سنګر ته را ودانګل.

لوی خدمتونه او مهمې کارنامې

حافظ بدرالدین حقاني د امریکایانو د یرغل پر وخـت نـوی د ځـوانۍ مرحلې ته رسیدلی و، د خپل ستر مجاهد پلار پـه امـر یـې د یـوه عـادي مجاهـد پـه حیث پکتیا، پکتیکا او خوست کې د صـلیبیانو پـر خـلاف پـه جهـادي معرکـو کـې برخـه واخیسته.

له چريکي بريدونو وروسته حافظ صاحب ته د فدايانو د کنډک مشري ور په غاړه شوه او د خپل شهادت تر ورځې پورې يې ډير په برياليتوب او استقامت سره سرته ورسوله.

حافظ صيب يقيناً هغه ځوک و چې په کامیابو تکتیکونو سره يې وکولای شوای چې د امريکا او ناټو د ماهرو پوځي جنرالانو له طرفه ټول جوړ شوي پلانونه او کمربندونه مات کړي، د دوی په پلانونو او خفيه پټنځايو کې به يې ډيره ژر خالي ګاه پيدا کوله او استشهاديان به يې په ډيرې آسانۍ سره تر خپل هدف رهنمايي او رسول.

له عمر نه بيخي کم وو خو تجربه يې د لويو پوځي افسرانو ځخه زياته او کاميابه وه.د ناټو د استخباراتي شبکو له طرفه ترتيب شوي دفاعي او حفاظتي تدابير يې په نوو نوو پلانو او يوه کيسزه او ډله ايزيو بريدونو دړي وړي کړل.

د خپل مسؤليت په وخت کې ۷۵ مختلف ډوله استشهادي بريدونه تر سره کړل، لکه:

د ميدان وردک ولايت سيدآباد ولسوالۍ کې ميشت امريکايي پوځي مرکز باندي د ټرک په واسطه استشهادی بريد چې امريکايانو په خپله ۷۷زخميان او ۳تنه وژل شوي ومنل خو په حقيقت کې دا زيان سل چنده وو ولي چې د پوځي مرکز د نيمايې نه زياته برخه د موټر بم د بريد سره له منځه تللی وه.

د خوست په ولايت صحراء باغ کې ميشت د امريکايانو پر ستر پوځي مرکز کې په يوه هوټل هغه وخت د موټر بم بريد کله چې امريکايان ډوډۍ خوړولو ته راټول شوی وو په دی بريد کې يوه پوځي الوتکه له منځه لاړه او د وژل شويو عسکرو شمير د سلو نه زيات وو.

د امريکايانو تر ټولو لوی پوځي مرکز باګرام په داخل کې کامياب بريد

په انټر کانټيننټل هوټل کامياب عمليات چې مضبوط حفاظتی کمربند فدايانو مات کړ او د هوټل په داخل کې يې لسګونه داخلي او خارجي جاسوسان و وژل.

خوست صبريو کې د امريکايانو په يوه لوی کمپاين بريد هغه تاريخي عمليات وو چې په افغانستان کې يې د امريکا او ناټو پوځي بنسټونه ولړزول.

د حافظ صيب د شهادت نه وروسته يې په ميدان وردګ ولايت کې د امريکايانو پر يوه لوی مرکز د مرسډيز ټرک په واسطه بريد.

د لوګر خدر کمپاين کې د امريکايانو د اوبو د انتقال ټانکر يې د خاص تکتيک له مخې بيرته په امريکايان استعمال کړ او د پوځي مرکز په داخل کې درونډ انفجار امريکايان ته درونډ زيان واړو،دا عمليات هم د شهيد حافظ صيب له طرفه ترتيب شوي وو.

په کابل کې د امريکايانو په موټرو او يونيفورم کې د سي آی اې عمومي مهم مرکز په داخل کې د استشهاديانو کامياب بريدونه هم د بدرالدين پلان شوي عمليات وو چې د ده له شهادت وروسته يې نورو ملګرو سرته ورسول.

د حافظ صيب يو بل مهم کمال او هنر دا وه چې د دښمن په ليکو کې لوړ نفوذ وکړ، د دښمن له ليکو ځخه يې هم خلک وهځول چې په خارجي يرغلګرو کامياب بريدونه وکړي او له منځه يې يوسي.

د حافظ صيب دغو عملياتو له وجهې امريکايانو حافظ صيب د خپل صف اول دښمن په حيث پېژانده او د حافظ صيب نوم يې په تور ليسټ کې داخل کړ.

د سې اې اي د يوه ډګروال په خوله د شهيد حافظ بدرالدين حقاني د استعداد اعتراف.

يو زنداني قاري ظاهر جبران د بدرالدين په اړه د امريکايانو احساسات داسې ليکي

دبګرام مشهور زندان ته یوړل شوم، مخکې له دې چې عمومي زندان ته مې انتقال کړي ، ۲۴ شپې او ورځې يې په يو ځای کې وساتلم چې هلته يې له ما څخه د بدرالدين په هکله ۴۳ تحقيقونه وکړل په آخره ورځ يو محقق راته راغی چې دنګه ونه سور رنګ اوشنې سترګې يې درلودې ،دمخ څېرې څخه يې معلومېده چې دژوند پنځوس پسرلي به يې ليدلي وي ځان يې د "ډګروال جان" په نوم رامعرفي کړ. راته يې وويل چې لتا څخه به ډېرې پوښتنې شوي وي خو نن زه او ته دبدر الدين په اړه خبره کوو ايا ته کولای شې چې دبدرالدين په هکله څه راته ووايې؟

ما ورته وويل چې زه نه خو بدرالدين پيژنم او نه کوم تعلق ورسره لرم نو څنګه به وکولای شم دبدرالدين په اړه څه درته ووايم؟

هغه زياته کړه چې ته نه راته وايې نو زه به درته ووايم دحقاني ۸ زامن دي له دوی څخه يو وژل (شهيد) شوی چې عمر نوميدو پاتې نور يې ژوندي دي چې مشر يې نصير الدين ده دوهم يې سراج الدين ده چې په خليفه صاحب مشهور ده چې دحقاني نمايندګي کوي دريم يې



بدرالدين ده چې ډېر ځيرک جنګي او خطرناک سړی دی.ته پوهيږې څنګه سړی دی؟

ما ورته وويل چې نه،ده زياته کړه چې ښه غوږ شه نو په دې وخت کې زه په چوکۍ کې راپورته شوم او ورته متوجه شوم دا وخندل . راته ويل يې لکه چې دبدر الدين خبرې ډېر خوند درکوي؟

نو ما ديو بندي په صفت چې دوسيې ته مې نقصان ونه رسيږي ډېر احتياط کولو ورته ومې ويل چې دمجلس آداب داسې دي چې يو څوک خبرې کوي بايد مخاطب ښه غوږ ورته ونيسي.بيا يې خبرې شروع کړې چې بدرالدين تقريبا ۲۵ کاله عمر لري خو دومره تجربه کار جنرال ده چې زما په نظر هغه جنرالان چې زمونږ په پوځ کې يې ۵۰ کاله تېر کړي وي دومره خطرناک نشي جوړېدلی څومره چې بدرالدين خطرناک وو په دې وخت کې ما ورته وويل چې تاسو هم هغه لاره تعقيب کړئ کوم چې بدرالدين په ۲۵ کلنۍ کې ورته رسولی وو او تاسو پنځوس کلنۍ کې هم نشئ ورته رسيدلای په دې وخت کې يې يوه ترخه مسکا وکړه سر يې وخوځوو خو ځواب يې رانکړو بيا يې وويل چې ته ويلی شې چې خلک ولې دومره پرې رامات دي او مينه ورسره لري ...؟

ما ويل نه. ويل يې زه به درته ووايم چې نرم مزاجه دی ترحم ډېر لري او په خپلو خلکو باندې ډېر مهربانه دی.

### فرهنګی مسؤليتونه

شهيد حافظ صيب په فرهنګی کاروکې هم ډېر مهارت درلود، په داسې وخت کې چې د وسايلو نشتوالی وو او مطبوعاتو پرمختګ نه وکړی شهيد حافظ صيب د اسلامی امارت د فرهنګی چاروکميسون مربوطه سټوډيو "منبع الجهاد" مديريت سمبال کړ او خوندور فلمونه يې ننداري ته واړندې کړل.

له تاسې لیرې شم چې تاسې په امن شئ ، په موټر کې مخته درته ځم، تاسې به حرکت نه کوئ، زه چې تر څو له هغې لرې غونډۍ نه - نه وم پناه شوی تاسو به نه راپسې راځئ. که بمبار یې وکړ هم نو تلفات به یې کم وي .

حافظ بدرالدين حقاني موټر روان کړ، درې تنه فدايانو د ده سره په يو ځای تلو ډير ټينګار وکړ حافظ صيب يې مجبور کړ چې ملګري هم ورسره کیناستل، د بې پیلوټه الوتکو ځوږ په زیاتېدو شو، د بدرالدین موټر لا غونډۍ ته نه و رسیدلی د اور لمبه یې د موټر په طرف لاړه او ورسره د میزایل لوی درز وشو، بل میزایل هم له الوتکو وار شو، له موټر نه یې تور لوګي پورته شول.

لکه حافظ صیب چې د خپل شهادت نه خبر وي خو د نورو د امن فکر ورسره څکه خو يې ځان له ملګرو ليرې کړ.

لږ وروسته چې نور ملګري کومک ته راغلل، ويې وليدل چې د موټر صرف ټیرونه او لاندینۍ برخه پاتې ده، د حافظ صیب او د نورو فدایانو غوښې، د جامو او د څادر ټوټې د موټر په اطرافو او هغه ځای کې لکه د ګلابونو غوټۍ خورې ورې پرتې وې او د حافظ صیب سینه روغه پاتې وه د فدایانو سالار له فدایانو سره یوځای مونږ په دې نړۍ په نمجنو سترګو پریښودو، خو د یوه لوی هدف او ارمان لپاره یې د اسلامي امت ځوانان وروزل، حافظ مړ نه دی ابدي ژوندی دی خو په دنیا کې له مونږ بیل شو .

نن د ۲۰۱۳ میلادی کال د اګست د میاشتې ۲۱ تاریخ او د سې شنبې ورز هغه غمجنه ورځ وه چې د افغان ځوانانو ویاړ، د یرغلګرو لوی قاتل، د فدایانو سالار او استاد، د خوست او وزیرستان په سرحدی سیمه کې امریکایانو د بې پیلوټه الوتکې د برید ښکار شوی و چې ټول بدن کې یې سینه روغه پاتې وه او په ټوټې ټوټې بدن سره د حافظ صیب شاته د فدایانو او خپلو شاګردانو لوی لښکر پاتې شو، ځوانانو ته یې لار ور وښودله چې څنګه په کمزوریو وسایلو سره قوي یرغلګرو ته ماته ورکول کیږي؟

دا یې هم ور زده کړل چې ځانونه ټوټې ټوټې کړئ خو باطل ته سر مه ښکته کوئ. حقانیت حق ته رسیدونکي حقانیان پیداکوي، او د خپل بدن په وینو به د اسلام مشعل بل ساتي.

بدرالدين د خپل پلار مولوی جلال الدين حقاني(حفظه الله) نه اولين شهيد ځوی وو نه آخرنی،د بدرالدين نه مخکې د بدرالدين دوه وروڼه شهيد عمرحقاني او محمد حقاني شهيدان شوي وو او د حافظ صيب نه ورسته د ډاکټر نصير الدين حقاني هم په شهادت ورسيدو.

**د امریکایانو په ناکام برید کې زخمي کیدل**

شهید حافظ صیب په یو جهادي سفر روان و د امریکایانو د بې پیلوټه الوتکې د برید لاندې راغی، میزایل دومره نږدې ورسره لګیدلي وو چې کالي یې هم سوځیدلي و، او پښې یې هم زخمي شوې وې، یو ملګری یې هم شهید شوی و، د امریکایانو سترګې ورباندې ړندې شوې او ونه توانېدل چې بدرالدين په شهادت ورسوي .

**د حافظ بدرالدين د شهادت کیسه**

فدايي عملیاتو ته ملګرو تیاری نیوه، د نښې ویشتو ازموینه وه د دې تر څنګ ملګرو یو بل ته په مینه ناک انداز په تذکير او تسبيح تشويق ورکاوه خو په هوا کې بنګنو اشر جوړ کړی و د انداخت له سیمې چار چاپیر راتاویدې کریهو اوازونو یې ټوله فضا نیولې وه، وضعیت ته په کتو حافظ صیب غږ وکړ:

ملګرو !

بې پیلوټه الوتکې بیخي را ټیټې شوې، داسې ښکاري چې بمبار به وکړي، تاسو ټیټ پرک کښینئ . هسې نه دښمن زما په موجودیت خبر شوی وي، زه باید



# په ګران هیواد افغانستان

## د روس او امریکا د یرغل ترمنځ توپیر

لیکوال: ابو محمد رحماني

دامریکایې اشغال په وړاندې دسپېڅلې مبارزې له پیله له ځېنې هیوادوالو سره داوېره راپیداشوې چې خدای مکړه ددې مبارزې اوقربانیو پایله موبیاله لاسه ونه ووځي دیو سپېڅلي اسلامي نظام آذارۍ امنیت اوسوکالۍ هېلې موپه ناهېلۍ بدلې نه شي هېوادمو دمقدس جهاد په پایله کې دپخواپه شان د خپلمنځي جنګونواوشخړو په ډګر بدل نه شي . خوزماپه آند روانه مبارزه اوجهادي بهیردصف یووالی دمشرانو اخلاص هغه څه دي چې سړی دمایوسۍ اوناامیدۍ څخه خلاصولای شي ځکه یرغلګرهېوادونه روس اوامریکاکه څه هم دیوه خره دوه غوږونه دي له اسلام اومسلمانانو سره په دښمنۍ کښې ترنوروهیوادونو مخکې دي خوبیاهم دوی په خپل منځ کښې په عقیدوي سیاسي اوجغرافیایې ډګر کښې ډېرې ستونزي لري روسان دعقیدې له نظره دهریان (دهیڅ آسماني کتاب اوپیغمبر پیروان نه دي ) دخپل زور قوت اوظلم په کارولو سره غواړي ځینې هیوادونه ترخپل اغیزلاندې راولي دهېوادونو په اشغالولو کښې یواځې له فوځې لارې څخه کاراخلي . خوبالمقابل امریکایان هغه څوک دي چې ځانونه اهل کتاب ( دآسماني کتاب اوپیغمبر پیروان ) بولي دوی دهېوادونو داشغال دپاره دپوځي یرغل ترڅنګ نورې ډېرې لارې په کاراچوي دوی دهېوادونو په پرتله دفکرونو اشغالولوته ډېره پاملرنه کوي ځکه مونږ ګورو چې ډېر اسلامي هېوادونه په فکري لحاظ ددوی له خوا اشغال شوي ددوی دخوښې نظامونه اولاسپوځي حکومتونه هلته شتون لري . فکري اشغال دپوځي اشغال په پرتله په کموتلفاتواوکمو مصارفو خوراخطرناک اودمقابلې لپاره یې ډېرې اوږدې مبارزې ته اړتیا ده دپوځي اشغال سره ملیتونه حساسیت لري په وړاندې یې راپورته کېږي خوکله چې فکرونه اشغال شي غیرتونه ووژل شي یرغلګرو اواشغالګرو ته ددوستانو په نظر کتل کېږي خپل عزت اودهیواد پرمختګ دهغوی سره په دوستۍ کښې وینې دخلکو پام دمعنویاتو په ځای دمادیاتو په لور واوړي ملتونه دشهوت اوغفلت په خوب ویده شي .خلک دغلامۍ له ژوندسره عادي شي دعیاشۍ اوعریانۍ په طوفان لاهوشي .بې دیني عیاشي اوعریانت ورته پرمختګ جهاد اوفداکاري ورته وحشت اوبربریت ښکاري

روسانومخکې له دې چې دخلکو په ذهنونو کاروکړي فکرونه اشغال کړي دامریکانو په خبر په دروغو وعدوخلک دوکه کړي یواځې دزور ظلم اووحشت اوپوځي یرغل په بنه یې ددغه هیواد داشغال دپاره میدان ته راودانګل چې په لومړي سر کښې افغانانو په تش لاس له دوی سره مقابله پیل کړه نړیوالو یوڅه وخت دغه لوبه وڅارله ځکه دهغوی په ګومان په تش لاس دسورلښکر سره چې ځان ته یې سوپر طاقت ویل مقابله ناشونې وه خوکله یې چې دافغانانو میړانه اوقرباني ولیده نودمرستې اوهمکارۍ لاس یې وراوږد کړ دامریکا په شمول ډېرو عربي هیوادونو په پوره پیمانه مالي اوپوځي کومکونه وکړل چې له امله یې ځینې ګاونډي هیوادونه له موقع څخه په ګټې اخستلودقوي پوځ اواتمي وسلو خاوندان شول مجاهدین په مختلفو ډلو اوتنظیمونو وویشل شول خوله دې هرڅه سره سره افغانانوپه پوره میړانه دغه مغرورکافراوظالم لښکر له شرمیدلې ماتې سره مخ کړ . په ډېر افسوز چې مجاهدینو ونه شوه کولای دیواسلامي خپلواک نظام په جوړولوسره دشهیدانونه ارمانونه پوره کړي دوی دقدرت په سر په خپل منځ کښې سره په جنګ اخته شول په دې وخت کښې نړیوالوهم افغانان یواځې پریښودل هیواد یو ځل بیا دمجاهدینو ترمنځ دجنګ په ډګربدل شو په دې وخت کښې په هیوادکې داسې ظلم اووحشت ترسره شوچې قلم یې له لیکلو څخه شرم کوي . ددغه حالت په لیدلو سره دملامحمد عمر(رحمه الله ) په نوم یوطالب دیوڅونوروملګرو سره یوځای دخلکوپه غوښتنه دشر اوفساد په وړاندې مبارزه پیل کړه دوی په لمړي سر کښې ددومره لویې مبارزې هوډ نه درلود خوداسلامي نظام امنیت اوسوکالۍ تږي ملت ددوی دغه مبارزه بدرګه کړه په پوره میړانه ددغه اسلامي تحریک ترڅنګ ودریدل



ترديږ چې دهيواد ۹۵ سلنه خاوره له شر اوفساد څخه پاکه اودشرعي نظام په وړانګو روښانه شوه . له همدې ورځې چې کله دافغانسان ملت دازادۍ سوکالۍ اودشرعي نظام په سوري کښې دآرام ساه واخسته دنړۍ کافرانو ددې نظام دپرځولو دپاره دبهانو په جوړلو پيل وکړ ترديږ چې خبره په ګران هيواد پوځي يرغل ته ورسيده.دځنيې جهادي رهبرانو له خوا دغه وحشي يرغل ته مشروعيت ورکړل شوله يرغلګرو څخه يې په دې مظلوم ملت دلويو بمونو دغورځولو غوښتنه وکړه

که څه هم روسانو امريکايانو ته دخپلو ترخو خاطرو په وريادلو سره ديرغل دنه کولومشوره وکړه خوبياهم دوی ويل چې مونږ دروسانو له يرغل څخه ډېرڅه زده کړی زمونږير غل بيله بڼه لري. امريکانو هم دخپل ټول زوراوتوان په کارولو سره دروسانو په ډول وحشتونه ترسره کړل چې هيڅ قانون اونظام ته دمنلووړنه وو ډېربې ګناه افغانان يې دالقايده اوطالب په نوم شهيدان اوځينې يې په وحشي- زندانونوکښې دتوروتمبو ترشا وغورځول . په افغانانو يې داسې په فساد ککړ حکومتونه يوپربل پسې دډمکراسۍ په نامه وروتپل چې نه دملت په درد دوا شول اونه يې دهيوادد آبادۍ او پرمختګ لپاره کار وکړ .

په ملياردونو ډالر په هيواد کښې تس نس شول دهيواد مهم ښارونه اوس هم دخوورځو دبارانونو په پايله کښې په درياب بدليږي . ملت چې داهرڅه دسر په سترګو وليدل يو واربياپې دهيواد اصيلو بچيانو ( طالبانو ) ته دهيواد دژغورلو وړانديز وکړ چې دوی هم په پوره ميړانه اوسختوستونزو اومشکلاتو سره چې هيڅ يو اسلامي هيواد ورته دکومک لاس نه ورکاوه مقابلې ته راودانګل . امريکانو که څه هم دروسانو له ترخو تجربو څخه ډېر څه زده کړي وه اودډېرو ډالرو پوځيانو اووسلو په کارولو سره بياهم ونه توانېدل چې دغه تش لاس خوپه اسلامي عقيده سمبال دملت له پوره ملاتړ څخه برخمن مجاهدين مات کړي

دادی مونږ ګوروچې ورځ تربلې د الله رب العزت په پوره نصرت اودملت په قوی ملاتړسره په هېواد کښې اسلامي لښکر مخ په وړاندې روان ده . لکه څرنګه چې دروسانو اومريکايانو ديرغل ترمنځ پوره توپير ترسترګو کېږي همدارنګه ددې دواړو يرغلونو په وړاندې مبارزه اومبارزه کونکي هم سره توپير لري . دروسانو په وړاندې جنګېدونکي مجاهدين که څه دنړۍ له پوره ملاتړ څخه برخمن وو خودعلم تقوی امانتدارۍ په وسله دومره سمبال نه وه دهغوی مشران دمادیانو اوڅوکۍ په هوس کښې په مختلفوډلو وويشل شول ترديږ چې په خپل منځې جنګ کښې ښکيل شول . خوداوسني جهاد اومبارزې اتلانو په وړاندې ټوله نړۍ يو لاس شوې دځمکې په سر هيڅ يو هېواد ددو ی ملاتړ کوونکی نشته . خوبيا هم دوی دجهادي رهبرانو له ترخو تجربو څخه ډير څه زده کړي اودخپل امارت په وخت کښې يې هم ملت ته ثابته کړي چې مونږ يواځې داسلامي نظام دپاره مبارزه کوو مونږ دخواهشتاتو، قدرت اوڅوکۍ عاشقان نه يو دطالبانو دواکمنۍ هيڅ يو لوړپوړی چارواکی په کابل اويا دهېواد په بل ښار کښې نه شخصي کوراونه تجارتي شرکتونه اونه هم لوړپوړيزې ودانۍ لري سره له دې چې دپخواني جهاد وړوکي قمندانان هم ډېر لوی جايدادونه کورونه شرکتونه اولوړپوړيزې ودانۍ لري .

دايو داسې حقيقت ده چې هيڅوک هم ورڅخه سترګې نه شي پټولی . داسلامي امارت دمخکښ امير المؤمنين ملامحمد عمرمجاهد( رحمه الله) دوفات څخه وروسته دنړۍ اوهېواد په کچه دښمنانو خورازيات کوښښونه وکړل ترڅو طالبان په مختلفو ډلو وويشي خودوی ترهرڅه زيات دخپل صف دوحدت اويووالي لپاره کاروکړ . ځکه دهېواد ددې ټولو ناخوالو يواځنی لامل دجهادي رهبرانو ترمنځ اختلاف اوجنګونه وه چې ترننه يې ملت دغم په ټغر کينولی که څه هم ځينوهغو مغرضواشخاصو چې دخپلو شومو اهدافو دپاره يې دامارت په صف کښې ځای نيولی وه دمنافقت اودصف دټوټه کولو هڅه وکړه خوالله الحمد مونږ ګورو چې دپوره ناکامۍ اوشرمنده ګۍ سره مخ شول.

امريکانو اودنړۍ نورو کفري هېوادونو که څه هم دروسانو له شکست څخه ډېر څه زده کړي وه زيات ډالر اوپرمختللې وسلې يې وکارولې . خوالهي نصرت ورسره ملګری نه وه له شکست سره مخ شول . ځکه الله تعالی له مسلمانانو سره ملګری دی خوبل خوا طالبان په دې جنګونو کښې ورځ تربلې غښتلي کيږي پوځي زده کړې کوي اوپه ډېر مهارت په دښمن کاري ګوزارونه کوي په ټول هېواد کښې په يوه نوم په يوه وخت اوپه يوه قمنده اود يوې لايحې له مخې خپل عمليات ترسره کوي . داچې داسلامي امارت قيادت دهيواد داصليو بچيانو علماوو حافظانو مفتيانو شيخو اومخلصو مجاهدينو په لاس کښې ده په يوه متحدصف کښې داسلامي ارشاداتو مطابق خپله مبارزه په وړاندې بيايې داهغه څه دي چې په مخکينو مجاهدينو کښې نه ليدل کېدل نو دغه توپيرته په کتوسره له الله تعالی څخه امېد لرو چې داځل به مو دشهيدانو وينې رنګ راوړي هيواد به مو ازادېږي ملت به داسلامي نظام په سوري کښې دعزت امن اوسوکالۍ ساه اخلي . انشاء الله وماذلک علی الله بعزيز .



# امریکایي جنرال:

## په غلچکیو جګړو کې امریکایي ځواکونه د میدان د ګټلو نه دي« زموږ جنرالان په افغانستان کې مات دي »

امریکایي جنرال جیسون ډیمپسي په یوه لیکنه کې ویلي، چې په افغانستان کې جګړه غلچکۍ او ګوریلایي ده، پدغسې جګړه کې امریکایي ځواکونه د میدان د ګټلو نه دي.

.د امریکایي پوځ د ماموریت او فعالیتونو ترتیب اوس هم د ۱۹۵۰ کلونو په څېر تړلی او جامد دی، د دغه ستراتیژۍ له مخې پوځیان کولای شي، چې د سولې او ارامتیا پر مهال ښه ځانونه تیار کړي، یا د تقلیدي جګړې په لومړیو کې څه لاسته راوړنې ولري، خو که جګړه ګوریلایي او غلچکۍ شي، بیا دغه ځواکونه د میدان د ګټلو نه دي.

جیسون په خپله لیکنه کې چې فارن پالیسي خپر ه کړې ویلي، چې په افغانستان کې د امریکایي پوځونو ماموریت ناکام دی، چې دغه ناکامي د امریکایي جنرالانو ناکامي ده.

جنسون ډیمسپي چې په په ۲۰۰۹ کې یې افغانستان کې د پلي ځواکونو د پوځي عملیاتو مسوولیت پر غاړه وه، ۲۰۱۲-۱۳ د پوله ساتو ځواکونو د جګړې د سلاکار په توګه دنده ترسره کړې.اوس د امریکا امنیتي څېړنو د مرکز غړی دی او د کولمبیا پوهنتون کې د پوځي چارو د څېړنو د مرکز مشر دی.

ډیمپسي- زیاتوي چې په ۲۰۰۹ ز کال کې، چې جنرال مک کریسټال په افغانستان کې د امریکایي او ناټو ځواکونو مشر قوماندان وټاکل شو، په ټولو پوځي مرکزونو کې یې له موږ ټولو پوښتنې وکړې: «ته په ځانګړې توګه څه کولای شي، تر څو موږ دلته پاتې شو او جګړه وګټو.» دا هغه وخت و، چې زه د افغانستان په ختیځ کې د یو سختې جګړې پر مهال د لوا مشر- قوماندان وم.دا یوه سمه او پر ځای پوښتنه وه، خو په عین حال کې دې پوښتنه کې هم چل و.

نوموړی وایي چې مک کرسټال له دې پوښتنې موخه ده وه چې د جګړې او د راتلونکي ملامتیا لپاره پوځیان په ګوته کړي ، د دغه ځواب له امله به دغه جنګیالي د اوږدې مودې لپاره په جګړه کې ښکېل وي، تر څو وضعیت د امریکایي سرتېرو په ګټه شي او د منفي چاپېریال او پایلې پر مهال به دغه ځواب ورکوونکي مسوول وي.

امریکایي جنرالان افغانستان ته د سیاحت په فکر پالیسي جوړوي، چې ورته د جګړې ګټل ناشوني دي.

جیسون لیکي چې موږ باید د ویتنام له جګړې عبرت اخیستی وای او دلته مو داسې پالیسي- غوره کړې وای، چې هغه تېروتنې مو دلته نه وای تکرار کړې.



هلته به یوې پوځي ډلې لـه اوو، تـر نهـوو ان تر دوولسو میاشتو پـه یـو ځـای کـې جګړې کولې. دغه ډول پالیسي د تکتیک او همدارنګه د سرتېـرو د مـورال ضـعیفه کولـو لـه املـه هـم ناکامه وه او په دې پالیسۍ مورږ نـه شـو کـولای چې مخالفین وځپو.

زمـوږ سرتېـري د دومـره اوږدمهـالې پرلپسـې جګړو توان او زغـم نـه لـري او سربېـره پـر دې زمـوږ لوړپوړي جنرالان هڅـه کـوي، چـې خپلمنځـي اړیکـې او بـاور رامنځته کړي او د اړتیا پر مهال په جګړه کې ترې اغېزناکه ګټـه پورته کړي. زموږ د جنرالانو ستونزه دا وه، چې هر څه ته بـه یـې سـطحي فکـر کـاو، د افغانسـتان سیاسي چاپېریـال بـه یـې د همدغه سطحي فکر له مخې ارزاو او بیا به یې پالیسي جوړوله.

دی وایي، د پنځلسو کلنـو جګړو پـه تېرېـدو بایـد لـه خپلو جنرالانو پوښتنه وکړو: «لا هم د کومې جګړې په تمه شپې ورځې تېروئ او د راتلونکي لپاره د کومې جګړې پـه تمه یو؟»

«موږ په افغانستان کې پنځلس کاله تېر کړل، افغانان پوهېږي، چې امریکایي جنرالان څنګـه لـه خپلـې خوښـې سره سم ترتیـب او مـنظم کـړي. امریکـایي جنـرال، چـې د لنډې مودې لپاره افغانستان ته د ماموریت لپاره ځي، دوی نه شي کولای، چې د دغه هېواد ټول حالات په سمه توګه وارزوي او لـه مخـې یـې ورتـه پالیسيـ هـم جـوړه او عملـي کړي. دا هر څه مې په ۲۰۱۲ کې پـه خپلـو سـترګو لیـدلي دي.

دا وایـي چـې د امریکـایي جنرالانـو د مـاتې او نـامۍ لنډه بهانه همدا ده چې د هرې ناکامۍ پړه د افغانـانو پـر اوږو واچوو.

په دې اړه ډېر بحثونه شوي، چې افغانان د طالبانو پـر ضد جګړه کې کومو شیانو ته اړتیا لري؟د پنټاګون یو مشر چـارواکي وویـل، چـې افغـان امنیتـي ځواکونـه هـوایي، استخباراتي او بېړنیو لوجستېکي مرستو ته اړتیا لري.

د امریکایي جنرال په وینا، زموږ چارواکو په دې اړه فکر نه دی کړی او نه چا دا پوښتنه کړې، چې طالبان لـه دغـو مرستو پرته څنګه کولای شي دومره پرمختګونه وکـړي، چـې نـه ورسره هـوایي ځـواک شـته، نـه د جګـړې معیـاري وسـایل او نـه هـم لوجیستیکي او استخباراتي مرستې.

نوموړي د ټرمپ لپاره په یوه مشور ه کـې ویـلي، چـې دا د ټرمپ لپاره یوه ښه پوښـتنه ده چې د سپینې مـانۍ له چارواکو یې وکړي.

ځکـه دوی بـه لـه ټرمـپ هـم غـواړي چـې «لا ډیـرو عسکرو ته اړتیـا ده، او لا ډېـرې پیسـې پکـار دي او لا ډېـر وخت پکار دی چې د افغان جګړه وګټو».

جیسون وایـي، خـو نـوی ولسمشرـ ډونالـډ ټرمـپ بایـد لـه امنیتـي مسـوولینو پوښـتنه وکـړي، چـې طالبـان ولـې پـه نشت وسایلو دومره پرمخ تللي دي؟.

امریکایي ځواکونه او زموږ جنرالان په افغانستان کې مات دي او دوی به له نوي ولسمشرـه خپلـه مـاتې پـدې ټکـو پټـوي چې لاډېر وخت، عسکرو او پیسو ته اړتیا ده.

# د مجاهد اخلاق او کردار

## د شریعت په رڼا کې

په دنیا کې دژوند تېرولو لپاره اسلام خپلو پېروانو ته ځانګړي آداب ښودلي چې ددې آدابوپه رڼا کې ژوند کول ددنیا اوآخرت دکامیابۍ زریعه جوړیدای شي که اسلامي تاریخ ته نظر وکړو نواوبه ګورو چې مسلمانان په هر وخت او هر ډګر کښې هغه وخت لوړ مقام ته رسېدلي او په خپل دښمن برلاسه شوي چې کله یې اسلامي احکامو اوآدابوته پوره پاملرنه کړي اوپه خپل ژوند کې یې عملي کړي . له دې امله په هردور کې ددین دښمنانو دډول ډول امکاناتو په کارولو سره هڅه کړې ترڅو مسلمانان له خپل دین اسلامي احکامو اوآدابو څخه لرې وساتي . په اوس وخت کې هغه څوک چې اسلام اواسلامي احکامو څخه دسر په قیمت دفاع کوي داسلام دلارې مجاهدین دي دنړۍ کفري طاقتو نه نه یواځې داچې ددوی په وړاندې له نظامي قوت څخه کاراخلي بلکې ددوی دبدنامو لپاره یې په تبلیغاتي ډګر کې هم ډېر کار کړی اولاهم نه دي ستړې شوي. مجاهدین یې دترهګر، بنسټپال ، تروریست، دآبادۍ اوپرمختګ دښمن....اوداسې نومونو سره نړیوالوته ورپېژندلي. خولله الحمد څومره چې دمجاهدینو په وړاندې دکفري نړۍ کرکه اونفرت زیاتیږي له دې نه په څوچنده زیات مجاهدین داسلامي امت په زړونو کې ځای پیداکوي .

اسلام دنورو آدابو ترڅنګ په نیکو اخلاقو ډېر ټینګار کړی ده ځکه اخلاق هغه سرمایه ده چې په دې سره مسلمان کولای شي په دنیاکې دځان لپاره زیات دوستان پیداکړي اودخلکوپه وړاندې دعزت اواحترام خاوند شي. په اسلام کې دعاومسلمانانوپه پرتله مجاهد ځانګړی مقام لري په قران اوحدیثو کې دمجاهد زیات فضائل بیان شوي علماوو پرې مستقل کتابونه لیکلي . خودلته مونږ یواځې دمجاهد اخلاق اوکردار اوپه ټولنه یې اثر ستاسوته په وړاندې ګدو .

ښایسته اخلاق اوکردار نه یواځې داچې یونېک عمل او دثواب کارده بلکې دټولنې په اصلاح کې مهم رول لري. درسول الله (صلی الله علیه وسلم ) دنېکو اخلاقو له امله زیات کافران داسلام په مبارک دین مشرف شوي دي .

ښایسته اخلاق هغه وسله ده چې دوینې له تودیدو پرته دهېوادونو ترڅنګ دانسانانو زړونه فتحه کوي. له همدې امله مجاهد ته پکار ده چې دنیت اوعباداتو داصلاح ترڅنګ خپل کردارد اواخلاقو ته هم ځانګړې پاملرنه وکړي .

مجاهدباید داخلاقوترڅنګ په عباداتوکښې هم ترنورومخکې وي . پنځه وخته لمونځ په جمعه اداء کړي دتلاوت اومسنونه اذکارو اهتمام وکړي دپلار اومورحقونه وپېژني اوپه اداء کولو کې یې سستي ونه کړي اوددوی په وړاندې له مهربانۍ اواحترام څخه ډک چلند وکړي . په کشرانوشفقت اودمشرانو احترام وکړي . دهمسایه حقوق په نظر کې ولري دهغه د سر ، مال ، اوناموس څخه په کلکه ساتنه وکړي دمریضانو

پوښتنې ته ځانګړې پاملرنه وکړي ځکه په احادیثوکې دمریض دپوښتنې ډېرثوابونه ذکرشوي.

اوهمدارنګه دمسلمانانو په وړاندې له کرکې، نفرت ، حسد ، کینې اوغیبت څخه په کلکه ځان وژغوري ځکه حسد اوغیبت هغه ناوړه ګناهونه دي چې دنیکو اعمالوثواب ضایع کوي. مینه اومحبت له منځه وړي . علماء فرمایې : لکه څرنګه چې دنیکو اعمالو کول مهم دي همدارنګه دنیکواعمالو ساتل هم ضروري ده نودی باید ترهرڅه زیات همدې خبرې ته پاملرنه وکړي ځکه ده په خپل ژوند کې هرډول نعمتونه، راحتونه اوخوندونه شاته غورځولي اوله اسلام څخه په دفاع کې یې په خپل ځان هرډول ستونزې اوکړاوونه زغملي هسې نه چې خدای مکړه په آخرت کې یې له ثواب څخه بې برخې شي . دمجاهدمجلس باید دنوروخلکو لپاره پند اوعبرت وي دمجاهد داخلاقو په لیدولوسره باید دخلکو له جهاد اومجاهد سره مینه اومحبت زیات شي له ځوانانوسره دجهاد جذبه پیداشي اوله پلرونوسره یې دااحساس پیداشي چې خپل ځامن له مجاهدینوسره ملګري کړي . دمجاهد سنګر اومرکزباید دمدرسې بڼه ولري عام مسلمانان باید هلته دجهاد په اړه ډېرڅه زده کړي. نه داسې چې دمجاهد له مجلس څخه خلک کرکه اونفرت وکړي . دمجاهد اخلاق باید ترخپلو ملګرو پورې خاص نه وي بلکې هرمسلمان اومجاهد ته دخپل ملګري اوورروپه سترګه اوګوري دخپلې دلګۍ دملګرو اونورو مجاهدینوپه وړاندې باید یوډول چلند اختیار کړي اوله ټولو سره له ښو اخلاقو کارواخلي . داسلام سترلارښود جناب رسول الله (صلی الله علیه وسلم) نړۍ ته دښو اخلاقو نمونه پریښې چې ډېرو مستشرقینو لیکولانو هم دهغه په ښایسته اخلاقو اعتراف کړی اودایې لیکلي چې دنړۍ په تاریخ کې دمحمد (صلی الله علیه وسلم) څخه لوړ دښواخلاقو خاوند بل څوک نه دی تیر شوی. په قرانکریم کې هم دهغه دنیکو اخلاقو ستاینه شوې الله رب العزت فرمایې : ( انک لعلی خلق عظیم) بیشکه ته دلویو اخلاقو خاوند یې اوبل ځای کې ورته امرکوي اوفرمایې(ادع الی سبیل ربک بالحکمة والموعظة الحسنة : الایة ) یعنې په حکمت اوښایسته نصیحت سره خلکوته ددین په لور بلنه ورکړه . اوهمدارنګه د صحابه کرامواداخلاقو په اړه الله رب العزت فرمایې ( والذین امنوا معه اشداء علی الکفار رحماءبینهم : الایة ) یعنې هغه کسان چې د هغه ملګرې دي دکفارو په وړاندې سخت دریځه دي خوپه خپل منځ کښې پریوبل ډېرمهربانه دي . په اوسنې وخت کې اسلامي امت ترنورو زیات دمجاهدینو کرداراواخلاق څاري اوله دوی څخه دملت په وړاندې دښواخلاقو آرزولري ځکه دوی پورې یې دراتلونکي ژوند ټولې هیلې اوامېدونه تړلي دي دوی دوحشي یهودیانو وحشتونه اوظلمونه په خپلو سترګو ولیدل ددوي دمظلومت آواز دځمکې په سر هیچاوانه وربده هغه څوک چې ځانونه داسلامي هېوادنو مشران بولي هغوي هم داسلامي امت په وژلو اوبې عزته کولو کې دیهودو ترڅنګ ودریدل نوځکه ورڅخه اسلامي امت ناهیلی شو دوی پورې ترلی امیدونه یې په سیند لاهوشول . په ځانګړې ډول زمونږ دردیدلي هېوادوال چې په خپل ژوند کې دکورنیو اوبهرنیو وحشیانو له خوا دظلم وحشت اوبربریت څخه ډکې نه هېریدونکې خاطرې له ځان سره لري دمجاهدینو نېکواخلاقو اوله مهربانۍ څخه ډک چلند ته تګي اوسترګې په لاردي.

نوداسلامي امارت مجاهدینو ته پکاردي چې دعام اولس په وړاندې خپله تګلاره په نبوي منهج برابره کړي په خپل کردار اواخلاقو کښې دخپلواسلافو په لار روان شي هغه څوک چې وسله په لاس خپلو مظلوموهېوادوالوسره دمهربانۍ څخه ډک چلند کوي اوپه ورین تندي ورسره مخ کېږي دکونډویتیمانو اوسپین سرو دحال پوښتنه کوي له سپینږو اوبوډاګانوسره مرسته کوي له عاموکلیوالو سره دآبادۍ اونوروخیریه کارونوکې ونډه اخلي دایقیني ده چې الله تعالی به داسې مجاهدین په ځمکه څه چې دانسانانو په زړونو واکمنان جوړکړي زمونږ په موجوده روان جهاد کې هم ددې ډیرې بېلګې ترسترګو کېږي . په هغو ځایونو کې چې مجاهدین له اولس سره ښه چلند اوغوره اخلاق لري دنوروځایونو په پرتله له اولسې ملاتړ څخه ډېر برخمن دي ورځ تربلې مجاهدین په هر ډګر کې پرمختګونه کوي دآبادۍ اوپرمختګ کارونه په کې په چټکۍ سره روان دي. تعلیمي اداري دمجاهدینو ترڅارنې لاندې په آرامه فظاء کې خپل فعالیت ترسره کوي . که اسلامي تاریخ ته ځیر شو نو معلومه به شي چې دنړۍ په کچه په ډېروهیوادونو هغه خلک تر ډېرو واکمن پاته شوي

کومو چې دخپل ملت په وړاندې له نیکو اخلاقو څخه کاراخستې.
. اوهمدارنګه به اوګوروچې داسبابو اوافرادوپه لحاظ سره دمسلمانانو دېرې کمزورې ډلې دکافرانو په ډېرو قوي طاقتونو برلاسي شوي چې ژوندې مثال یې دطالبانو په وړاندې داوباما دناکامۍ اعتراف ده نو اوس هم باید زمونږ مجاهدین دخپلو اسلافو تاریخ تازه کړي په خپلو عباداتو، اخلاقو، اوکردارسره نړیوالو ته مجاهد وروپېژني ترڅوخپل هدف ته هم په اسانۍ سره ورسېږي اواسلامي امت هم له روان حالت څخه وژغوري په دې ورستیو کې دنړۍ په ګوټ ګوټ کې دمجاهدینو بې دریغه قربانیو دنړۍ ډېر کافران دې ته اړکړي چې داسلام په اړه مطالعه وکړي چې په پایله کې مونږ ګورو هره ورځ په زیات شمېرکې کافران داسلام په مبارک دین مشرف کېږي که دالله تعالی نه نصرت نه وي نو دننني کفري نړۍ وسلې امکانات اوفوجونه دطالبانو له نظامي قوت سره دپرتله کیدو قابل نه دي مجاهدین باید روان فتوحات اوبریاوې دالله تعالی نصرت اوکومک وګڼې اوپه راتلونکې کې هم له هغه څخه دنصرت دعاګانې وغواړي.

په ټوله نړۍ کښې دمجاهدینو دکامیابۍ او دسپېڅلي اسلامي نظام دنفاذ په هیله

## امریکا له داسې ولس سره

# دغـــــرې وهي ! !

په دنیا د ننګیالو وي دا دوه کاره
یا به وخوري ککرۍ یا به کمران شي

دښمنان دې نه خوشحالیږي چې د حارث خوګیاڼي والد صاحب مو په شهاد ورساوه دوی به غمجن شي، د جهاد لار به پریدي، د خپل مسیر نه به منحریف شي
خو دا ارمان دې دوښمنان ګور ته یوسي چې مونږ به پخپل مسیر کې منحریف شوو
که د یو تن په شهادت مونږ د خپل مسیر څخه منحریف کیدلی نو څلور کاله وړاندې به مو خپل مسیر ته تبدیلي ورکړې وه
ځکه چې څلور کاله وړاندې مې کاکا برهان الدین فدایي حمله وکړه او د ابد لپاره یې راځخه رخصت واخیست
د هغه نه وروسته مې بل کاکا اسلام الدین د شهادت لوړ مقام ترلاسه کړو خو بیا هم مونږ خپل مسیر منحریف نکړو او نه مو خپله تګلاره بدله کړه
بلاخره تیره ورځ مې والد صاحب هم د شهادت لوړ مقام ترلاسه کړو په شهادت یې دومره ویاړ کووم چې اظهار یې نشم کولی
قسم بالله چې په شهادت یې افتخار کووم فخر ورباندې کووم
د والد صاحب سره مې د بیستر مرګ ښه نه ښکاریدو ځکه چې د اخلاقو، دیانت، امانت دارۍ، شجاعت، او غیرت یو دنګ منار وو
ځکه خو ورته الله تعالی مرګ د شهادت ورنصیب کړو
بیا هم وایم چې په شهادت یې قسم بالله که خفه ووم او نه به ورباندې خفه شم
خو د والد صاحب فراق منم چې دردونکی دی
لله الحمد میندو مو دومره بچې زیږولي دي چې د کفر د اشغال تر خاتیمې پورې به دغه فریضه مخ پر وړاندې بیایوو
او د ژوند تر اخیري سلګۍ پورې او ترحو مو چې د کورۍ یو تن هم ژوندی وي دغه سپیڅلې مباریزه پر مخ وړوو

# دکابل رژیم

## په حساب (۱۰۰۰) تنه جنرالان!!

(جمیل عزم)

دکابل اداره چې مشري يې دامريکايي نړۍ دوهم مفکر (اشرف غني ) کوي اوړومبی مرستيال يې (جنرال دوستم) دی ويل کيږي چې په حساب (۱۰۰۰) جنرالان لري

دغوزروتنوته اشرف غني اوياله هغه وړاندې کرزي په سينه دجنرالی مډالونه ورټومبلي دي ؛ خوامريکايان وايي چې دجګړې په ميدان کې تراوسه ۱۰ تنه داسې جنرالان هم ندي ترسترګوشوي چې دطالبانوپه مقابل په کلکه جنګيدلي وي اوهغوئ په رښتيابياپه دې ووارزي چې دجنرالی مډال اواعزازدې په سينه ځوړندکړي .

جان‌اف. سوپکو،چې دملي اردودجوړښت اوپه پښو درولو يو موظف امريکايي صاحب منصب دی وايي : دافغانستان اردوزمونږ په ليستواوتشکيلاتوکې چې دهغوله مخې مونږورته هره مياشت معاش اجراکوو (۳۵۰) زره تنه ده چې په دوئ کې هغه ۱۰۰۰ تنه جنرالان هم حساب دي چې اشرف غني اوکرزي ورته دجنرالی مډالونه ورکړي ،ولې هره مياشت په سلګونوعسکردطالبانوپه مقابل وژل کيږي چې دهغوپه جمله کې ارومرو بائيدده يو يادوه تنه جنرالان هم شامل وي خومونږ نه پوهيږوچې دعسکرو اوجنرالانو دمعاش اونوروامتيازاتوپه برخه کې ولې تغيراوکمبودنه راځي اوس هم هماغه ۳۵۰زره اردو ده او ۱۰۰۰ تنه يې جنرالان اولس کاله وړاندې يې هم همداکچ اوميچ !!

دغه امريکايي وايي : په داسې حال کې چې امريکا دافغانستان داردو دری برابره پوځ لري ، ولې جنرالان يې تراوسه ۱۰۰۰ تنو ته ندي رسيدلي ، ښکاري چې يادغه شميره جنرالان جعلي اوخيالي دي اوياهم دسياسي اوتنظيمي تمايلاتوله مخې جنرالان ګرځول شوي دي .

جان‌اف سوپکوزياتوي : دانديښنې وړ خبره ده چې له يوې نيمي لسيزي اوړيدوورسته هم هغه پوه نشوچې افغان ملي اردو ته دوئ دڅومره عسکرومعاش ورکوي اوپه مشخص ډول يې جنرالان څومره اوچيرته دي .

دچاروماهرين وايي په څه ډول چې دکابل رژيم ايجاد اودبنسټ ډبره په فساد، درغلی اوغلامی ايښودل شوي اوپه سرکې يې هغه خلک قرارلري چې له اسلام اوملت سره دغداری اوجفااوو اوږد تاريخ لري نودغه لويدلي ځيري دخپل ناولي ضميرله مخې اړدي چې هغه کړنې او کارنامې اورمروسرته رسوي چې معيارې جنايت ، فساداوله انسانيت سره دښمني ده .

هغه کسان په ځان راټولوي ، لوړوپوستونوته به يې رسوي اوجعلي جنرالان به يې جوړوي چې ددوئ لپاره غوړې اوپريمانه شوکې راوړي اويااړې مظلوم اوبې دفاع ولس ښه ځورولي اوګواښلی شي

چې لنډ اوتازه دم مثال يې جنرال دوستم ، جنرال حضرت علي اوجنرال زرداد فريادي دی

يوجنرال يې په شمال کې له عاموسلمانانواوبې دفاع پرګنوڅخه پوستکی باسي ،وژنې يې کورونه يې چورکوي اوپه شخصي زندانونه يې شکنجه کوي ، سپين روبوباندې تيري کوي اوټول انساني کرامت يې ترپښولاندې کوي ،بل جنرال يې په مشرقي کې په نوروپخوانيواواوسنيونارواوو سربيره خپلو لوچکانو ته امرکوي چې هرډول بې عفتی ته لاس واچوي اوحتی دوه خوينديدي هم دځان لپاره په زوره په نکاح کې راوستلی شي اودابل جنرال خويې اوس اوس انګريزانوصحنې ته راوغورځاوه چې څه کوي هغه ته متې بډوهه !!

دمزدور رژيم دغه حالت اودغه وحشتونه داسې ندي چې په غيري ارادي ډول مخې ته راغلي اويار اځي ، بلکې دوئ اوباداران يې ديوې تګلارې له مخې غواړي اوغوښتي يې دي چې دافغان مجاهد اومتدين ولس په سردغه تاليخې اوله هرډول اخلاقي اوانساني کرامت څخه عاري اوليري ځيري تپلي اوټومبلي وساتي ترڅويې چې افغانان له افغاني غرور اولوړوديني ارزښتونو څخه لاس په سرشوي نه وي

خوداسلام اوافغانيت ددښمنانواوغليمانودغه فکر سخت پوچ ناممکن اوهغه دشاعرخبره ( خيال است محال است جنون)

# له سترو هیوادونو سره

# د طالبانو سیاسي اړیکي؟!!

حماد نیازی

طالبان چې کله په دې پوهه شول چې له ۴۷۷ مجهزو او په هر ډول عصري وسلو بار کافرانو سره جګړه یواځې په ټوپک نه ګټله کیږي، بلکې په دې جګړه کې نیمایي بریا د راڼه سیاست له کبله تر لاسه کیږي، نو د ځینو هیوادونو په غوښتنه په ۲۰۱۳ م کال کې یې په قطر کې دفتر پرانیست .

دا دفتر په لمړي ځل د امریکایانو او د طالبانو ترمینځ د مخامخ خبرو کولو لپاره جوړ شو، خو کله چې طالبانو وویل، چې موږ د کابل له حکومت سره خبرې ځکه نه کوو چې د کابل اداره د امریکا لاسپوځې اداره ده او د امریکایانو له اجازې پرته څه نشي کولای، نو کرزي او د کرزي حکومت د دې دفتر په بندولو کې هڅې وکړې، د سولې خبرې یې په ټپه ودرولې او بالآخره دفتر بند شو.

طالبانو قطر ته له تللو روسته، په پټه د نړۍ ګڼو هیوادونو ته سفرونه پیل کړل، له ډېرو هیوادونو سره یې اړیکې جوړې کړې او خپل دریځ یې تر ډېرو هیوادونو ورساوه.

همداراز طالبانو د سولې په نوم په جوړو شویو رسمي کانفرانسونو کې هم ګډون کاوه، چې د نړۍ په مختلفو هیوادونو کې جوړېدل، د کانفرانسونو له لارې یې د هیوادونو رسمي غږو ته خپل دریځ روښانه کاوه او له دې لارې یې اړیکې هم جوړولې. په ۲۰۱۵ م کال کې له هیوادونو سره د طالبانو اړیکې ښکاره شوې، طالبانو په ښکاره باندې ګڼو هیوادونو ته سفرونه وکړل او د ګڼو هیوادونو له استازو سره یې ولیدل.

## د داعش پنځول :

د دوه زره پینځلسم عیسوي کال په اخره کې امریکایانو د سیمې د استخباراتو په ګډون داعش وپنځاوه، د امریکا له داعش پنځولو نه هدف: په عربي نړۍ کې د جګړې ډګر تود ساتل؛ مذهبي جګړې پیل کول؛ ایران او عرب سره جنګول؛ د ربښتینو مجاهدینو کمزوري کول؛ د خلافت او جهاد نوم بدول؛ د اسرایلو امنیت ساتل او د روسیې غوندې د امریکا رقیب هیوادونه په جګړه کې راښکیل کول و، متاسفانه چې امریکا دې ټولو هدفونو ته د داعش په مټ ورسېدله .

چې کله په لمړي ځل په عراق او سوریه کې داعش راپیدا شول، له پیله غربي رسنیو ورته په ګټه تبلیغات وکړل او تر اټکل زیات یې وځلول .

داعشانو له څو میاشتو روسته، نوم له داعش څخه اسلامي خلافت ته بدل کړ، د رسنیو د تبلیغاتو په مټ له ګڼو هیوادونو مسلمان شازلمي د داعش لیکو ته راغلل او داعش په زرګونو خلګ راجلب کړل .

په عراق، سوریه او ټوله عربي نړۍ کې یې د سني او شیعه جګړه ونښلوله، د اسرایلو پر ځای یې پر مجاهدینو مرمۍ واورولې، د اسلام په نوم یې هغه وحشتونه وکړل چې نوموني یې ډېرې کمې موندل کیږي، د اسرایلو باډر یې

وساته خو سعودي کې یې بمې چاودنې وکړې، روسیې ته داعش هغه وخت لا خطر محسوس شو چې کله افغانستان ته واستول شول، نو د دې لپاره چې د داعش ریښې وکاږي، سوریې ته یې عسکر ولیږل، په سوریه کې وحشت او قیامت جوړ شو، زرګونه بې ګناه مسلمانان ووژل شول، په لکونو مسلمانان وربړول شول، زندانیان او بې کوره شول چې داعشانو یې په خوشالۍ نندراه کوله.

## افغانستان ته د داعش راتګ :

کله چې عراق کې د داعش پروژه د امریکا په ګټه وځلېدله، امریکایانو وغوښتل چې افغانستان کې هم داعش راپیدا کړي، دسیمې د استخباراتو په مرسته بلآخره امریکا وتوانېدله چې افغانستان کې هم د داعش پروژه عملي کړي.
د امریکا هدف دلته د داعش له راپیدا کولو دا و چې د طالبانو مخه د داعش په مټ ډب کړي، هیواد کې مذهبي جګړې پیل کړي، روسیه، چین ایران، پاکستان او نور هغه هیوادونه چې په افغانستان کې د داعش حضور د ځان لپاره خطر ګڼي په جګړه کې راښکیل او افغانستان لوټه_لوټه کړي .

همدا لامل و چې داعش په لمړي ځل د ایران سرحد ته نیږدې ولایتونو: هلمند او زابل کې راپیدا شول، په ننګرهار کې د چین د ویرولو لپاره راپیدا شول او په شمال کې د ازبکستان او ترکمنستان د ویرولو لپاره ځای پرځای شول .

د داعشیانو له راپیدا کیدلو سره سم، په زابل کې مسافر هزاره ګان چې ښځې او ماشومان هم پکې وو وتښتول شول، چې د افغانستان په جګړه کې تر ټولو حیرانونکې پېښه وه او مخکې یې نمونه نه وه لیدل شوې، د داعشیانو لمړۍ لومه وه، ترڅو دلته د شیعه او سني په نوم مذهبي جګړه پیل کړي، همداراز داعشیان تر اوسه تر خپله وسه هڅه او کوښښ کوي چې شیعه ګان په نښه کړي، او مذهبي جګړه پیل کړي.

## له داعش سره د طالبانو جګړه :

رسنیو او چارواکو هغه وخت د هزاره ګانو تښتول پر طالبانو تاوان کړل خو طالبانو اعلان وکړ چې دا کار موږ نه دی کړی او د تښتول شویو د راپیدا کولو او خلاصولو لپاره کوښښ کوو .

طالبانو په ډېرې هوښیارۍ او مهارت سره په زابل، هلمند او شمال کې د داعش نوم ورک کړ.

ډېره حیرانونکې دا وه چې په زابل کې په سلګونو داعیشیان میشت ول، له هغوی سره ډول ډول وسلې وې، پر ځان دومره غره ول چې طالبانو په میاشتو میاشتو ورته پلاوې لیږل تر څو له دې وحشتونو لاس واخلي خو هغوی یوه لاره هم نه ورسره منله، خو دا ټول یې په یوه نیمه ورځ کې له مینځه یووړل او له هغوی سره برمته نیول شوي هزاره ګان چې ښځې او ماشومان هم پکې و، وژغورل .
په شمال کې د داعش شمیر دومره نه و چې طالبان دې ورسره مقاومت وکړي، هغوی له ډاره ننګرهار ته وتښتېدل او په ننګرهار کې هم طالبانو په وارو وارو داعشیان وزغلول.

## د داعش په راپیدا کولو کې د ملي امنیت مرسته :

د ولسي جرګې لمړي مرستیال حاجي ظاهر قدیر په بیا_بیا ویلي چې زه اسناد لرم چې ملي امنیت له داعشانو سره مرسته کوي، د داعش قومندانان راځي او د ملي امنیت له غړیو سره په کابل کې شپې کوي، حاجي قدیر همداراز ویلي و چې امریکایان او ملي امنیت په هیلیکوټرو کې داعش وسله وال د ننګرهار په غرنیو سیمو کې کوزوي او هغوی ته وسلې هم په هلیکوپټرونو کې وروړي .

د ولسي جرګې نورو غړیو هم ورته ادعاوې کړې دي او د داعشانو راډیو وای د جلال آباد له هوایي ډګر نه نشرات کوي .

دا دی اوس رسنۍ راپوروونه ورکوي چې د شمال قومندانان داعشانو ته وسلې لیږي او پر هغوی یې پلوري.

د سیمې خلګو هم په ننګرهار، پکتیکا او نورو سیمو کې هغه الوتکې لیدلې دي چې داعشان یې انتقالول، یا یې هغوی ته وسلې وروړلې .

د یوې قوي سرچینې له مخې ویل کیږي چې په افغانستان کې د داعش د ډلې مشر- عبد الرحیم مسلم دوست اوس هم په کابل کې اوسي او چې کله د داعشانو وسله یا نور مهمات په کار وي نو له مسلم دوست سره اړیکه نیسي، هغه یې بیا ورته په الوتکو کې رالیږي.

## د سیمې له هیوادونو نه د کابل امتیازات:

د کابل حکومت که له یوه پلوه په پټه باندې د داعشانو په راپیدا کولو او ځای پر ځای کولو کې مرسته کوله، له بله پلوه یې د هغوی پر ضد څه ناڅه جګړې هم وکړې، ترڅو د داعش سره د تمثیلو جګړو په بدل کې له روس، ایران او چین نه امتیازات ترلاسه کړي، د کابل حکومت چارواکو روس او چین او ایران ته په دې اړه سفرونه هم وکړل او له روس او چین نه یې څه ناڅه امتیازات هم تر لاسه کړل، د روس حکومت د کابل له حکومت سره د لس زره میله کلاشینکوف مرسته وکړه .

خو روسته روس، چین او ایران ته جوته شوه چې د کابل حکومت له دوی هسې امتیازات اخلي او د داعش اصلي روزونکي او تمویلونکي همدا د کابل حکومت دی! نو یې پر بدیلو لارو غور وکړ .

یاد هیوادونه مجبور شول چې له طالبانو سره اړیکې ونیسي، د طالبانو سیاسي چارواکو ته دعوت ورکړي .

طالبانو هم له موقعې نه په ښې استفادې سره، په دې اړه ورته لا توضیحات ورکړل او د کابل حکومت او امریکا له دسیسو یې خبر کړل، خپله سیاسي پالیسي- یې ورته څرګنده کړه او هغوی ته یې وښودل چې موږ ستاسو لپاره خطر نه یو، موږ د خپل هیواد د آزادولو لپاره مشروع مبارزه کوو. همغه و چې یادو هیوادونو له طالبانو سره رسمي اړیکې پیل او اعلان کړې او طالبان یې په رسمیت وپېژندل.

ولي غربي رسنۍ له هیوادونو سره د طالبانو اړیکې زهرجنې معریفي کوي؟

دا ښکاره او جوته خبره ده چې د چین او روس غوندې د امریکا له رقیبو هیوادونو سره د طالبانو اړیکې او د هغوی له لوري طالبان په رسمیت پېژندل، د امریکې او ناټو وګړو ته ستر زیان او یو ستر سیاسي ګزار دی، نو غربي رسنۍ د غرب په چوپړ او خدمت کې دي، هغوی مجبورې دي چې په زهرجنو تبلیغاتو سره د داسې اړیکو مخه ونیسي- طالبان د روس او نورو هیوادونو اجرتي قاتلان معریفي کړي په داسې حال چې له سترو هیوادونو سره سیاسي اړیکې لرل د خپلواکۍ ستره نښه ده .

که له سترو هیوادونو سره اړیکې د غلامۍ مانا ولري نو د نړۍ پر مخ به داسې هیواد پیدا شي چې له هیڅ ستر هیواد سره سیاسي اړیکې ونه لري؟

آیا په خپله امریکایان له ناټو او نورو هیوادونو سره سیاسي اړیکې نه لري، که ځواب مثبت وي، نو امریکا د ناټو او نورو هیوادونو علامه ده؟

په اسلام کې هم له کفري هیوادونو سره سیاسي اړیکې لرل مشروع او روا دي، خو په دې شرط چې د مسلمانانو مصلحتونه او ګټې په نظر کې ونیول شي .

رسنۍ ولي د کابل د حکومت اړیکې له هیوادونو سره نامشروع او زهرجنې نه معریفي کوي، په داسې حال چې د هیواد پر سر ورسره اړیکې لري، د هغوی ګټې ساتي، خپل مسلمان ولس د غربیانو لپاره وژني او له خپلو هیوادوالو سره د امریکا او ناټو د ګټو لپاره جګړه کوي !!

غربي میډیا د طالبانو پر ضد له دومره سپین سترګې کار اخلي چې ساری یې نه لیدل کیږي .

تېره ورځ د آزادۍ راډیو خبر ورکړ چې کندهار کې روسي وسلې نیول شوي، نو افغانستان کې خو له روسانو دومره وسلې پاتې شوې، چې دا څوارلس کلونه پرې مجاهدین جنګیږي، دا څو میاشتې مخکې د کابل حکومت

تـه روسـيـې لـس زره کلاشـینکوفونه ورکـړل، ترڅـو پـرې مسلمانان ووژني، تاسو وینئ چې هرځـای کې طالبـان لـه عسکرو وسلې او مهمات غنیمت کوي او که یې غنیمـت هـم نه کړي د هر افغان پـه کور کې لږ تـر لـږه دوه میلـه روسـی وسله پیدا کیـږي، چـې اوس د افغـان بچیـانو د خپلـو پلرونـو وسلې راخیستې دي ترڅـو پـرې د ۴۷ هیوادونـو کـافران او د هغوی مزدوران ووژني .

لـه دې پرتـه دلتـه د ۴۷ هیوادونـو وسـلې شـته، چـې افغانـانو لـه ۴۷۷ اغشـالګرو هیوادونـو غنیمـت کـړي دي، دا لیـزرې وسـلې چـې اوس یـې طالبـان پـه پراخـه پیمانـه لـري، ټولې لـه مـزدورو عسـکرو، امریکایـانو او لـه ناټویـانو غنیمـت شـوې دي، یـواځې لیـزري وسـلې نـه بلکـې طالبـان سـلګونه ټانګونه، رینجر موټر او اکمالاتي موټر لري، چې ټـول یـې لـه مزدورو عسکرو غنیمت کړي او لا یې هم غنیمت کوي.

طالبانو سره روسیه، ایران او چین د مهماتـو مرسـته نـه ده کړې، نه یې شاید وکولای شي، نه تر اوسـه طالبـانو د داسي وسـلو غوښـتنه کـړې، کـه طالبـان لـه چـین، ایران او روس نه وسلې غواړي نو تر هرڅـه لمـړی بـه د الوتکـو ضـد وسـلې وغـواړي، تـر څـو د امریکایـانو او ناټویـانو د الوتکـو مخـه ونیسي۔ او کلـه چـې دا وسـله طالبانو تـه ورسـیږي، یـوه میاشـت هـم ورسره دا کفـار نشي جنګېدلای.

رسنۍ د غرب دي او د غرب پـه ګټـه پـه طالبـانو پسې تبلیغات کوي .

د رسنیو ادعا به هغه وخت رښـتیا وي، چـې پـه یـوه ورځ کـې پـه هیـواد کـې د اشـغالګرو سـل الـوتکې وویشتل شي.

**نتیجه :**

طالبـانو لـه پیلـه لا لـه داعشـانو او اشـغالګرو څواکونو سره د دې لپاره جګړه کوله چې خپل ولـس او هیواد د دوی له شره وژغـوري، خـو د طالبـانو دا کـار د سیمې د هیوادونو په ګټه و، څکه هغوی مجبور شول چې لـه طالبانو سره سیاسي اړیکې پیدا کړي .

که طالبانو له داعش سره رښتینې مبارزه نه وای کـړې، روس او چین به د ایران پـه ګـډون مجبـوره شـوي وای چـې د خپلو هیوادونو د ساتلو لپاره افغانستان ته د داعشانو پر ضد څواکونه راولیږي، دلتـه د هغـوی پـر ضـد هـوایي او ځمکنـۍ جګړه پیل کړي او افغانستان لوټه لوټه کړي .

که یې څواکونه نه وای رالیـږلي نـو لـږ تـر لـږه لـه کابـل حکومت سره به یې د وژونکو وسلو مرسته کړې وای، د کابـل حکومت مالومه ده چې خپلواک نـه دی، د امریکـې د پـروژې داعش پر وړاندې د امریکې له اجازې پرته جګړه نشي کولای او نه د امریکې د پروژې پر وړاندې خنـډ جوړیـدلای شي، نـو دا وسلې به یې پر طالبانو کارول وای او یـو خـونړی حالـت بـه رامینځته شوی وای.

## وچ توت شکرې ته ګټور دي

ژباړه: حمیدالله حمیدي

هغه کسان چې د شکرې ناروغي لري، د دې لپاره چې په وینه کـې یې د شکرې کچه کنټرول وي، له ځینو خوړو پرهېز کوي، خو بایـد وویـل شي چې د دې ناروغۍ لپاره وچ توت ګټور دي.

هغه خوړه چې په توتو کې دي، د سوربیټول په نامـه یـادیږي او ینې لپاره ګټوره ده او د هغو کسانو لپاره یې ګټه ډیره ده چـې د شـکرې ناروغي لري.

کوم کسان چې په وینه کې یې شـکره لـوړه ده او یـا یـې هـم د شکرې ناروغي وروستي حد ته رسېدلې ده، ښه ده چې د توتو خوړلـو پـه اړه له خپل معالج ډاکټر سره مشوره وکړي؛ ځکه توت کولی شي یـوازې لږ پرمختللې شکر ناروغي کنټرول کړي.

توت او ممیز؟

توت او ممیز که څه هم ساله قند لري، خو له کچې زیـات هـم باید ونه خوړل شي .

هغه کسان چې د شکرې پر ناروغۍ اخته دي، په ورځني ډول بایـد په خپلو خوړو کې له پنځه کالري زیات شکره وانه خلي



ليکوال: فضل الله محبت

# آيا د افغانستان جنګ يو صليبي جنګ نه دی؟

راځئ چې خپله د صليبي آمريکا د طواغيتو او ملګرو له خولې يې واورو!

د آمريکا پخواني ولسمشر او پر أفغانستان د صليبي ټلوالې د يرغل قومندان جورج بوش د دغه جګړې موخه او مطلب په ۱۶/۱۱/۲۰۰۱ ميلادي کې د يو مطبوعاتي کنفرانس په ترڅ کې داسې په ډاګه کړل:

This crusade, this war on terrorism is going to take a long time .

ترجمه: دغه يوه صليبي جګړه ده کوم چې د ترهګرۍ (اسلامېزم) پر ضد شوع شوې ده چې تر اوږدې زمانې پورې به دوام ولري.

د بوش د دغې وينا څخه وروسته د ۲۰۰۱م کال د دسمبر په دريمه د أمريکا د (نشنل ريويو) مياشتنۍ کې د ستر طاغوت بوش انځور په داسې حال کې د مياشتنۍ په لومړي مخ کې خپور شو چې د منځنيو پېړيو د صليبي جګړې د اتلانو (شواليه) جامې يې په ځان دي او د تصوير لاندې يې ليکلي دي : د لويديځ په وړاندې اساسي ستونزه بنسټپالنه نده بلکه اساسي ستونزه اسلام پخپله اسلام دی.

همدا رنګه د "نشنل ريويو "مياشتنۍ چلوونکي "ان کالتر " د مياشتنۍ په سر کې ليکلي وو : چا چې په آمريکا د سپټمبر ۱۱ ترهګريز بريد تر سره کړی، چا چې د هغوی ملاتړ کړی او د چا چې د دې بريد د انځورونو په ليدلو سره خوشحالي کړې او پر شونډو يې موسکا راغلې هغوی ټول د دغه بريد پړه بلل کېږي، موږ بايد د هغوی په هيوادونو بريد وکړو، مشران يې ووژنو او عوام يې بايد بايد مسيحيت ته راوبولو.

هماغه وو چې جګړه پيل شوه، بوش وکولای شول چې د نړۍ د صليبي هيوادونو يو ګډ صليبي لښکر تيار کړي او پر افغانستان يې حمله وکړه، تاريخي افغانستان چې د کلونو تنده يې په يو اسلامي نظام ماته شوې وه، خو لا پوره سېرابه شوي نه وو او نه هم اسلامي امارت خپلې پښې په پوره توګه محکمې کړې وې؛ يوه ناترسه او وحشيانه حمله وکړه اسلامي امارت يې سقوط کړ او د غرب په ګټو او غوښتنو ولاړ يو غير اسلامي نظام يې حاکم کړ.

جګړه بېرته شروع شوه د تاريخي أفغانستان په لر او بر کې په صليبيانو طوفاني او ځپونکې حملې پيل شوې، صليبيانو بالآخره خپل ډېر زور او زر استعمال کړ مګر بيا هم دغه طوفان يې په قرار نه شو کړای بلکه دغه طوفان په څو چنده ځپونکی او

خطرناک شو، آمریکا په تېرو پنځلسو کلونو کې د خورا بدو او حیرانوونکو پېښو سره مخ شوه، مګر د دې سره سره بیا هم جګړه دوام لري.

د بوش نه وروسته د آمریکا بل طاغوت بارک اوباما قدرت ته ورسېد او ژمنه یې وکړه چې د خپلې دورې تر پایه به د افغانستان جګړه پای ته رسوي، ده ګمان کولو چې د افغانستان مؤمن ولس او او مقدس جهاد به په مادي او معنوي ډول وځپي او بالآخره له منځه به یې یوسي مګر داسې ونه شول د هغه د ګمان خلاف او د دوی تر فکر او تصور لوړ شکستونه یې وخوړل.

پرون اوباما په واشنګټن کې وویل: آمریکا په افغانستان کې لا هم په سخته جګړه کې ښکېل ده او د افغانستان جنګ یې د آمریکا په تاریخ کې د آمریکا تر ټولو اوږد جنګ وبللو.

همدارنګه د آمریکا نوي طاغوت ډونالت ترمپ هم د دغې جګړې د دوام هوډ کړی دی او ویلي یې دي چې د ګوانتانامو زندان به کله هم ونه تړي بلکه خالي شوې برخې به یې بېرته په نورو ترهګرو ډکوي.

په هر حال، د لیکنې څخه مې موخه د هغو خلکو پوهول دي چې لا هم دغې جګړې ته د شک په سترګه ګوري او د آمریکا او متحدانو خلاف یې د طالبانو جهاد ته د فقط د بین الأفغاني جګړې په سترګه ګوري، هغوی باید د بوش، اوباما او اوسني ټرمپ خبرې په ژوره توګه تحلیل کړي او خپل ویده احساس را ژوندی کړي؛ د افغانستان د ملي اردو، ملي پولیسو او ملي امنیت ځواکونه هم باید په شعوري او غیر شعوري توګه د آمریکا له خوا د پیل شوې او روانې جګړې پر مخ وړونکي ونه اوسي او د خپلو نیکونو زرین تاریخ بدنام نه کړي، لږ باید دې ته سوچ وکړي چې ولې اوباما د دوی په لاس د طالبانو خلاف جګړه خپلې آمریکا ته منسولوي، په داسې حال کې چې د صلیبي ځواکونو مخامخ حضور په دغه جګړه کې د د بل هر وخت په نسبت کم رنګه هم دی.

فاعتبروا یا اولی الأبصار....

# مـور څـوک ده؟

احمد شفیق

**پوښتنه وشوه چې مور څه شی ده؟**

۱) الله جل جلاله اویا ځله له مور څخه زیات مهربان دئ.

۲) سمندر وایي: مور هغه هستي ده چې د اولاد په سلګونو زره رازونه په سینه کي پټ ساتي.

۳) وریځو وویل: مورهغه هینداره ده چې هر رنګ پکښي له ورایه ښکاري.

٤) غرونو وویل: د مور درناوئ زما له څوکو څخه هم ډېر لوړدئ.

٥) باران وویل: مور یوه داسي هستي ده چې تل یې د میني وړانګي پر اولاد خپرې وي.

٦) زمانې وویل: د مور مینه زما له ځغل څخه هم تېزه ده.

۷) شاعر وایي: مور یوه داسي هستي ده چي د اورېدونکي سینې ته کښته کیږي.

۸) لیکوال وایي: مور هغه هستي ده چي د ستاینې لپاره یې په نړۍ کي الفاظ نه موندل کیږي.

۹) دعا وایي: مور هغه شخصیت دئ چي د اولاد د خوښۍ لپاره هر وخت ماغواړي.

۱۰) جنت وایي: مور هغه هستي ده چي زه یې هم تر قدمونو لاندي یم.

۱۱) لمر وایي: مور یوه داسي هستي ده چي له هرډول ګرمۍ او یخنۍ څخه اولاد ساتي.

۱۲) ځمکه وایي: زما قیمت خو به څوک پوره کړي خو د مور قیمت هیڅوک نه سي پوره کولای.

۱۳) هوا وایي: په ماکي نرمي او تازګي د مور څرګندونه ده.

١٤) رڼا وایي: مور د رڼا او ښودني څلی دئ.

# دحلب سقوط
# او د شام خوفناک مستقبل

شهید زوی

شام چې نوی نوم یې سوریه ده اولویدیځوال یې syria بولي تاریخي قدامت یې په نړۍ کې مثل نه لري؛دقدیمو انساني تهذیبونو او تمدنونو دمرکزیت کوم مقام چې دا سیمه لري په ټولې نړۍ کې یې ثاني نشي وړاندې کېدای.

خو دمنځني ختیځ داترټولو ښکلی، تاریخي،سرسبزوشاداب، دباغونو ، شنوبڼونو، ښکلو ځنګلونو، دغرونو په لمنو کې دښکلو ساحلونو لرونکی او په تېرو وختونو کې داسلامي خلافتونو مرکز اوس په ټولې نړۍ کې دتېرو کابو ۵ کلونو راهیسې دډېر بداوبوګنونکي حالت سره مخامخ دی ؛دمسلمانانو پدې تاریخي هېواد کې اوس دبشارالاسد ظالم دولت زیاتره لویو ښارونو ته خوراکي مواد او دواګانې نه ورپرېږدي او مسلمانان یې دمصنوعي قحط سره مخامخ کړیدي؛ دمېرمنو منظمه بې عفتي روانه ده ؛اسدي فوځونو او نورو شیعه ملېشو په سونو زندانونه جوړ کړیدي چې پکې ځوانان، بوډاګان،کوچنیان او مېرمنې دسختو تعذیبونو ښکار دي؛دلته ډېر ستر بشري ناورین دی؛ددې هېواد ستر او تاریخي ښارونه په کنډوالو بدل شول،دلته دداوړو اړخونو نه جنګیالي کم او ولسي وګړي زیات وژل کېږي چې زیاتره یې کوچنیان او مېرمنې وي.

دلته انسان هیڅ ارزښت نه لري؛له هر څه دبې ګناه انسانانو وینه ارزانه ده؛دلته دانسانانو دعامه وژنې لپاره کیمیاوي مواد کارول کېږي

دمشق چې اوس ددې هېواد پلازمېنه ده دنړۍ داسې ترټولوقدیمه پلازمېنه ده چې په ابادۍ اوقدامت کې ورته دنړۍ بله یوه پلازمېنه هم نشي رسېدای؛ د۴۱هق نه تر۱۳۲ هق پورې دادټولې اسلامي نړۍ دارالخلافه وه

شام چې ورسره دمسلمانانو ډېر جور دیني او تاریخي تړاودی دفاروق اعظم رضی الله تعالی عنه دخلافت په زمانه کې۶۳۸م کال کې دابوعبیدة بن الجراح رضی الله تعالی عنه په نوم درسول الله صلی الله علیه وسلم دهغه صحابي په لاس فتحه شو چې ورته دامین الامة ستر لقب ور په نصیب شوی و.

هغه سیمه چې بشارالاسد یې حاکم ګڼل کېږي؛پکې دمسلمانانو قتل عام روان دی او نړۍ یې دشام اوسوریه په نوم پېژني قدیم شام یواځې دهمدې سیمې نه عبارت نه و بلکې قدیم شام دننۍ نړۍ دپنځو هېوادونو سوریه،لبنان،اردن،قبضه شوي فلسطین(اسرائیل)او ازادفلسطین څخه عبارت و.

دهمدې قدیم شام ځمکه دانبیاءکرامو په مرکز یادېږي؛اب الانبیاء حضرت ابراهیم علیه السلام دعراق نه دهمدې شام یوې برخې فلسطین ته هجرت کړی و؛دحضرت ابراهیم علیه السلام په اولاد کې دحضرت یعقوب او حضرت اسحاق علیهماالسلام ټاټوبی هم همدا فلسطین و؛حضرت یوسف علیه السلام هم دهمدې فلسطین دیوې قریې کنعان نه مصر ته تښتول شوی و چې ورونه او والدین یې هم ورپسې بیا هغه مهال دکنعان نه مصر- ته ورغلې وو کله چې په سیمه کې قحط و او یوسف علیه السلام ته دمصر بادشاهي ورکړې شوې وه.

یعقـــوب علیـــه الســـلام دخپلوبچوسره یوځای په مصرکې مېشت شوی و خواولاد یې خپل وطن هېر کړی نه و اوکله چې حضرت موسی او حضرت هـارون علیهماالسـلام دالله تعـالی لـه لـورې مبعـوث شـول اودفرعـون سره داوړدومقابلونه پس دالله تعالی په حکـم دمصرـنه ووتـل اودفرعـون لښـکرې ورپسې شوې نودمصرـ فرعون دخپلو لښکرو سره یوځای دسرې بحیـرې پـه خلـیج کـې غـرق شـو او مظلومـو بنـي اسرائیلو ته الله تعالی دفرعون دظلمونـو نه په همدې شام کې نجات ورکړ.

حضـرت لـوط او حضـرت شـعیب علیهماالسلام هـم دهمـدې سیمې و او دحضرت داود ،حضرت سلیمان،حضرت یوشع،حضرت زکریا ،حضرت یحی او حضـرت عیسـی علـیهم السـلام هـم همدلته مبعوث شـوي وو اوهمـدا دشـام ځمکه یې ددین دتبلیغ اواشاعت مرکزو.

بیـت المقـدس دهمـدې شـام پـه اردن نـومې ولایـت کـې قـرار لـري چـې صخره مقدسـه یـې دتېـرو امتونـو اوپـه شروع کې دمحمدصلی الله علیـه وسـلم دامت قبلـه وه ؛ مسجداقصـی یـې هغـه مســـجد دی چـــې دمســـجدحرام او مسـجدنبوي نـه پـس ورتـه الله تعـالی دنـورو ټولـو مسـاجدو نـه لـوړ مقـام ورکـړیـدی ؛درسـول الله صـلی الله علیـه وسـلم معـراج یـانی آسـمانونو تـه پورتـه کېدل دهمدې مسجداقصـی نـه شـوي و او دمعـــراج پـــدې شـــپه پـــه همـــدې مسجداقصـی کـې رسـول الله صـلی الله علیه وسلم دټولو انبیاءو امامت کړی و.

حلـب چـې لویـدیځوال یـې (Aleppo )بـولي دهمـدې هېـواد شـمالي ښـار دی؛دابنـار ۱۹۰ کلومتره مساحت لري؛داوسني جنګ نه وړاندې یې شمېر کابو ٦ ملیونو ته رسېدلو؛یانې دهېواد ۲۵ سلنه نفوس پدې ښار کې اوسېدلو؛ داوسـېدونکو ۸۰ سـلنه یـې سـني مسلمانان او نـور ۲۰ سلنه یې نصیریان اوعیسویان دي؛دابنار ددې هېواد ترټولو ستر او زوړ ښار او دهېواد اقتصادي پلازمېنه ګڼل کېږي ؛ددې ښار حسن او ابادی ته دنـړۍ پـه زړو ښـارونو کـې یوښـار هـم نـه شورسپدلای ؛دا ښارکابو ۵زره کلونه قبل المسیح قدامت لـري او زرکالـه قبـل المسیح هـم دابنـار دتجارت اوسوداګرۍ په لحاظ بې مثله و.

بغداد ته تلونکې او دبغداد نه راتلونکې ټولې قافلې به دهمدې حلب له لارې تېرېدې؛دحلب ټوکې یارختونه به په ټـولې نـړۍ کـې مشـهور وو؛دعربـو ټولـو سیمو تـه بـه همـدا دحلب ټـوکې تلل؛دحلب هندارو ته دنړۍ دیوځای هنداري هـم نـه شـوې رسـېدای؛په ټـولې نـړۍ کـې دحلـب هنداري مقبولې وې.

دسـویزدکانال جوړېدونـه وړانـدې دابنـار دتجـارت ترټولـو سـتر مرکـز و؛دروم بحیـرې نـه دمنځني ختیځ ښارونو ته راتلونکې ټولې قافلې به له همدې ښار نـه تېرېـدلې ؛ددې ځـای سـپین سنګ مرمر په ټولې نړۍ کې ډېرشهرت لري؛که څه هم دهېواد پلازمېنه دمشق دی خو داقتصاد مرکز یې حلب و اودټول هېواد ٦٠سلنه مصنوعات دهمدې ښار نه نړۍ ته صادرېدل.

دمنځني ختیځ دټولو قـدیمو تهـذیبونو او تمـدنونو آثـار او نښـې اوس هـم دلتـه ترسـترګو کېږي؛داددې سیمې د اسلامي تمدن ترټولو ستر مرکز و؛دلته ډېر سـترجوماتونه او مدرسـې وې او مدرسې یې ډېرې مشهورې وې؛دلتـه ډېرسترمفسرـین ،محـدثین ،فقهـاء ، مـورخین اوادبي اوعصري علوموپوهان تېرشویدي ؛ دنړۍ په سطحه دنامتو فیلسوف ابونصرفارابي تړاو دهمدې ښار سره و؛دا ښار پـه ۱۹۸٦ م کـې یونیسـکودټولې اسلامي نـړۍ داسلامي تهـذیب او ثقافـت پلازمېنې په صفت ومانه او دلته دشتو تاریخي آثارو دساتنې لپاره یې اقدامات پیل کړل.

په همدې حلب کې المدینه نومې هغه قدیم بازار هم دی چې نن هم دنـړۍ ترټولـو لـوړ بـام لرونکی بازار ګڼل کېږي.

ویل کېږي چې دنړیوال شهرت نه برخمن دحلب په نوم پدې ښار چې پـه تېـرو زمـانو کـې خومره حملې شویدي دنړۍ په یوښار هم ندي شوې.

په ۳۳۳م کال کې پدې ښار سکندراعظم حمله وکړه او دابنـار یـې قبضـه کړ؛پـه څلـورمې عیسوي پېړۍ کې بازنطیني حاکمانو پرحلب حمله وکړه او په بشپړه توګه یې قبضه کړ؛دبازنطیني حاکمیت پرمهال حلب دومره پرمختګ وکړ چې په ۵مې پېړۍ کې دا ښار دنړۍ په مرکز بدل شو.

ددې ښار دنیولو په موخه په دې ښار عربانو او ایرانیانو هـم ډېـرې حملـې کړیدي؛داسـلام ستر سپه سالار ابوعبیدةبن الجراح رضی الله تعالی عنه چې دابنار په ٦۳۷م کال کې فـتح کولـو نو دلته بازنطیني حاکمیت و؛په لسمې پېړۍ کې یوځل بیا بازنطیني ځواکونو دابنار ونیولو؛پـه ۱ ۱ مې پېړۍ کې دترکې مسلمانانو دابنار تر خپلې ولکې لاندې راوست او لره موده پس بیـا صـلیبي جنګونه پیل شول.

دترکانو دعثماني خلافت پرمهال دقاهرې او قسطنطنې نه پس داداسلامي نړۍ دریم ترټولوستر ښار و.

په ۱۰۹۸ م کې فرانسې،انگلستان،ایټالیا او المان پربیت المقدس دقبضې راوستلو لپاره یوملیون مشترک فوځ تیار کړ چې مشرې یې"گاډتامې"نومې فرانسوي جنرال کوله؛پر مشهورو ښارونو قونیه او انطاکیه باندې دقبضې راوستلو نه پس دا فوځ شام ته ورننوت او دلته یې د۱۰۰ زرو نه زیات مسلمانان ووژل .

په ۱۱۷۳م کې صلاح الدین ایوبې رحمه الله تعالی حلب فتح کړ او ددې ښار دفاعي حالت یې ښه مضبوط کړ؛اوبیا یې له همدې ځای نه دبیت المقدس دازادۍ لپاره په صلیبي لښکرو حمله وکړه؛یوملیون فوځیانو ته یې شکست ورکړ او بیت المقدس یې آزاد کړ.

دصلیبیانو پرضد په جنگونو کې دنورالدین زنگي لپاره همدې حلب دپلازمېنې حیثیت لرلو.

داسلام ستر اتل عمادالدین زنگي هم حلب خپله پلازمېنه گرځولې وه؛په صلیبي جنگونو کې دوه ځل دا ښار صلیبي لښکرو محاصره کړی و خو په نیولو یې نه وؤ توانېدلي.

رکن الدین هم له همدې ښار نه تاتاریانو ته شکست ورکړ او سیمه یې ترې پاکه کړه.

هو!دشام دا ځمکه دخیرونو او برکتونونه ډکه هغه ځمکه ده چې پخپله الله تعالی یې په خپل مقدس کتاب قرآن عظیم الشان کې دیونه زیات ځلي دمبارک کېدلو خبر ورکړیدی.

الله تعالی دسورة انبیاء په ۸۱ یم آیة کې فرمایي:او موږ سلیمان (علیه السلام)ته هوا تابع گرځولې وه چې جاري به وي دهغې ځمکې پرلورچې موږ پکې برکت اچولی.

ټول مفسرین فرمایي چې ددې نه مراد دشام ځمکه ده.

همدا راز دهمدې سورة په ۷۱ یم آیة کې الله تعالی فرمایي :موږ لوط او ابراهیم (علیهماالسلام)ته په نجات ورکولو بوتلل هغې ځمکې ته چې موپکې دټمامو خلکو لپاره برکت اچولی.

الله تعالی دسورة بني اسرائیل پیل پدې الفاظو کوي:پاک دی هغه ذات چې خپل بنده(رسول الله) یې بوتلود مسجدحرام نه مسجداقصی ته هغه چې چارچاپېره ترې موږ برکت اچولی.

دخیرونو او برکتونو نه ډکه همدا ځمکه نن دسترو زبر ځواکونو دشومو پلانونو دعملي کېدا په ستر ډگر بدله شوې او دلته دبې گناه انسانانو ډېر ستر قتل عام روان دی؛ دمنځني ختیځ ترټولو ښکلی،تاریخي،سرسبزوشاداب،دباغونو،شنوبنوټو،ښکلوځنگلونو،دغرونو په لمنو کې دښکلو ساحلونو لرونکی او په تېرو وختونو کې داسلامي خلافتونو مرکز اوس په ټولې نړۍ کې دتېرو کابو ۵ کلونو راهیسې دډېر بداوبوگنونکي حالت سره مخامخ دی ؛دمسلمانانو پدې تاریخي هېواد کې اوس دبشارالاسد ظالم دولت زیاتره لویو ښارونو ته خوراکي مواد او دواگانې نه ورپرېږدي او مسلمانان یې دمصنوعي قحط سره مخامخ کړیدي؛دمېرمنو منظمه بې عفتي روانه ده ؛اسدي فوځونو او نورو شیعه ملېشو په سونو زندانونه جوړ کړیدي چې پکې ځوانان،بوډاگان،کوچنیان او مېرمنې دسختو تعذیبونو ښکار دي؛دلته ډېر ستر بشري ناورین دی؛ددې هېواد ستر او تاریخي ښارونه په کنډوالو بدل شول،دلته ددواړو اړخونو نه جنگیالي کم او ولسي وگړي زیات وژل کېږي چې زیاتره یې کوچنیان او مېرمنې وي.

دلته انسان هیڅ ارزښت نه لري؛له هر څه دبې گناه انسانانو وینه ارزانه ده؛دلته دانسانانو دعامه وژنې لپاره کیمیاوي مواد کارول کېږي

دشام روان ناورین باندې دپوهېدلو لپاره لږ ماضي ته سر ورښکاره کول ضروري دي.

په منځني ختیځ کې دړومبي نړیوال جنگ پرمهال په استعماري دور کې دقومي جنگ رامنځته کولو او دمنځني ختیځ دټوټه ټوټه کولو لپاره پلان جوړ شو او ۱۹۱٦م کال د مئ میاشت کې ددې شوم پلان دعملي کولو تړون رامنځته شو دا تړون ((دسایکس پیکو)) په نوم یادېږي؛ددې تړون له مخې امریکا،ایټالیا،فرانسې ،برتانې او روسې پدې خبرې اتفاق وکړ چې په ټولې نړۍ کې دتېلو دزېرمو نه پرغني سیمې دقبضې راوستلو لپاره دبحراسود او بحرقزوین نه تربحرمتوسط اودعربو بحیرې پورې دعثماني خلافت ترواک لاندې داټوله سیمه باید تقسیم او ترخپل استعمار لاندې راوستل شي؛پدې پلان عمل پیل شو او چې په لنډو یې ووایو نو روسیه او برتانیه په عربو کې دقومي تعصب په راپارولو او دیو بل پرضد دعربو او ترکانو دجنگولو

په پلان کې کامیاب شول نو عثماني خلافت سقوط وکړ او دعراق، کویت، ســـعودي عربســـتان،قطر،بحرین، امارات، سوریه،اردن،لبنان، فلسطین، اسرائیل، ترکیه،مصر ،لیبیا او دتیونس په نومونو داسې هېوادونه رامنځته شول چې پرې برتانې او فرانسې داستعمار پنجې خښې کړې.

ددې سیمې دټوټــه ټوټــه کولــو ترشا یـواځې یـو فکـر و چـې څرنګـه دمسلمانانو واحد قیادت ختم او دسیمې پـر زېرمـو قبضـه یقینـي شي څکـه چې پدې شپو ورځو کې نړۍ پدې سیمې کې دتېلو دسترو زېرمو دشتون نه خبره شوې وه .

خـو دا چـې پـه نـړۍ کـې دوهـم نړیوال جنګ رامنځته شونو دنړۍ ستر زبرځواکونه دسترو تاوانونو سره مخامخ شـــول ترخپــــل اســـتعمارلاندې ددې هېوادونو دساتلوتوان یې له لاسه ورکړاو ددې سیمې پـه اړه یـې چې کوم پلان درلودلو هغه هغسې تطبیق نه شوځرنګه چې دوئ غوښتلو .

خـودا چـې دسـترو زبرځواکونـو ترمنځ دسوړ جنګ حالت رامنځته شونو نـړۍ دوه قطبـي شـوه چـې پـه دواړو اړخونو کې هریو دخپل اتحاد دغښتلو او له ځان سره دلازیاتو هېوادونو دیوځای کولـو او ددې هېوادونـو پرطبعـي زېرمـو دزیاتې قبضې هڅې کولې چې دهمدې هڅو په لړ کې شام دشوروي اتحاد پـه څنـګ کـې ودرېـد ؛ شـام دشـوروي اتحادي ګنډل کېدلوخو په خپل عمـر یـې یوداسې اقدام هم ونکړ چې دلویدیځ دزیات نارضایت سبب شوی وای بلکې ددې هېواد دولت چې داسلام او مسلمانانو پر څپلوکې یې دکفري دولتونونه هم زیات اخلاص ښکاره کاوه نو ورنه دشرق او غرب یوه کفري نړۍ هم نـه وه خفه.

اصل خبره داده چې دلته حاکمیت دمسلمانانونه و ؛ په شام کې ۷۵ سلنه دسني مسلمانانو ده ۱۲ سلنه پکې دهغه نصیریانو ده چې اوس ځانونه علویان بولي،۱۰ سلنه پکې عیسویان دي او ۴ سلنه پکې دریزیان دي.

نصیریان ددې هېواد اقلیت دی خو واک دهمدوئ دی او ټوله کفري نـړۍ هـم دهمدوئ واک غواړي.

دعثماني خلافت دړنګېدو نه پس چې دا سیمه دبرتانې او فرانسې تراستعمار لانـدې راغلـه نو فرانسې نصیریانوته دعلویانو نوم کېښود او پـه پولیسو؛فوځ او ملکي ادارو کـې یـې پرغټـو پوستونو همدوئ مسلط کړل؛ کله چې دمائیکل عفلق په نوم یو عیسوي دبعث ګوند جوړ کړ نـو ټوله مشري یې همدې نصیریانو ته ورکړل شوه؛په ۱۹۴۴م کـې چـې فرانسې او برتانې ترخپـل استعمار لاندې ګنې سیمې پرېښودې نو شام هم په همدې سیمو کې و.

شام کې نصیریانو ته حکومت پاتې شو او بل هیڅا ته هم په حکومت کـې برخـه ور نکـړل شوه؛په ۱۹۷۰ م کـې نصـیري وزیردفـاع حـافظ الاسـد دبعثـې ولسمشرـ نورالـدین العطـاشي او دلومړي وزیر یوسف زین پرضد کودتا وکړه ګودتا یې کامیابه شوه او دقـدرت واګـې یـې پـه خپـل لاس کې واخستې.

دحـافظ الاسـد ورور رفعـت الاسـد داسـتخباراتو مشرـ و چـې دواړو پـه ۳۰ کلونـو کـې پرمسلمانانو سخت ظلمونه وکړل؛یواځې بعثیان په واک کې وو او ټول مسلمانان دټولو حقوقو نـه سخت محروم وو.

په ۱۹۸۲م کې دحماة ښار اوسېدونکو ددولت دظلمونـو پرضـد مظـاهرې پیـل کـړې چـې پرضدیې بشارالاسداورفعت الاسد ډېر سخت غبرګون ښکاره کړ؛ ټول ښار یې تر ۲۷ ورځو پورې محاصره کړ؛له هوا نه یې پرې سخت بمبار وکړ؛او دځمکې له لارې یې ورته توپونه مخامخ کړل؛ په ۲۷ ورځو کې دبشارالاسد وحشي فوځ پـدې ښـار کـې ۳۰ زرو نـه تـر ۴۵زرو پـورې بـې ګنـاه مسلمانان ووژل؛دظلم دپاسه ظلم دا و چې پدې ۲۷ ورځو کې دمړو شوو انسانانو دفنولو ته څوک نه وېرېښودل شوی اوتر۲۷ورځو پورې سوځېدلي اوټوټه ټوټه شوي انسانان همداسې په میدان پراته وو.

په ۲۰۰۰م کال کې حافظ الاسد ومړ او ځـوی یـې بشارالاسـد دقـدرت واګـې پـه لاس کې واخستې چې دا په صحیح معنو دکفن کش ځوی وخوت پلار یې دخپل قدرت لپاره په حماة ښار کـې پـه ۲۷ ورځـو کـې ۲۰ زره نـه تـر ۳۰ زرو پـورې مسلمانان وژلي ووخـوده تـر ۵ لکـو پـورې مسلمانان قتل کړل؛ په سونو زره نور یې ټپیان کړل؛٦ ملیونه شامیان یې په هېواد کې دننـه او ۵ ملیونه یې دهېواد نه بهر هجرت کولو ته اړ کړل ؛هېواد یې په کندواله بدل کړخو بیا یې هم خپـل وژدان نه ملامتـوي او نـه دمظلوم ولس دقتـل عـام لـړۍ بنـدوي نـو څکـه شـنونکي وایـې چـې

بشارالاسد درونډا او بوسنيا قتل عام له خلکو هېر کړ او داسې ښکاري چې دا اراده يې کړېده چې دټول شام دورانولواودټول ولس دوژلو نه پس که ورته په قبرونو او کنډوالو دحکومت کولو موکه په لاس ورشي دا به ښه فرصت او غنيمت وګڼي او هيڅکله به يې له لاسه ورنکړي.

په ټول شام کې دبشارالاسد ظلمونه ډېرلوی دي خو اوس يې چې په حلب کې دخپلواتحاديانوسره يوځای کوم وحشت ښکاره کړ نوهغه له حده وتلي ستر دي .

دبشارالاسدخونخوارو فوځونو ؛ دشيعه ملېشو په لسګونو نورو ډلو وحشي روسانو داښار په کلي ډول په کنډوالي بدل کړ؛ د٦ مياشتنيو بمباريو په نتيجه کې پدې تاريخي ښار کې هيڅ روغ نه وو پاتې؛ټول دولتي تاسيسات؛ ښوونځي،جوماتونه او روغتونونه دځمکې سره برابر شوي وو.

دلته په زرونو تنان مړه او ټپيان شول؛ بې وسلې او بې وسه خلک چې ورته ددې ښار نه دوتلو لپاره دامن لار او دپناه ځای په نظر نه راتلو په کنډوالو کې ايسار پاتې وو چې په مقابل کې يې بشارالاسد دفتحې اعلان وکړه او په کنډوالو کې دايسار شويو همدې مظلومو مسلمانانو دوژلو ،لوټولو او بې عفته کولو په موخه اسدي او ايراني فوځونه او دحزب الله په شمول دلسګونو نورو شيعه ډلو ملېشې دې ښار ته ورننوتې چې دورننوتلو سره سم يې په سرکونو لارو او کوڅو کې هر په نظر راتلونکی انسان وويشت.

يو روغتون ته ورننوتل ړومبی يې دروغتون ټول ډاکټران،نرسان او دروغتون نور پرسونل يويوووېشت اوبيا يې ټولومريضانوته دټوپکوشپېلی ورمخامخ کړې اوټول مريضان يې په څوثانيوکې په يوځای ووژل چې شمېر يې ٢سوه ته رسېدلو.

پدې پېښې دخوښی ښکاره کولو په ترڅ کې دايران داپوزيسيون دباندنيو چارو دکمېټې مشر محمدمحدثين وويل چې زموږ دالقدس غورځنګ ځوانان وو چې دجرأت او شجاعت نه ډکه دا وياړمنه کارنامه يې ترسره کړه.

دنړۍ دنورو پوهانو او څېړونکو په څېر ډېرو روسي پوهانو او څېړونکو هم دا پوښتنه راپورته کړه چې آيا پدې مترقي دور کې په دومره ورانۍ او دانسانانو په دومره ستر قتل عام ديو ښار نيول ارزي؟

دا پوښتنه پر ځای پوښتنه ده خو چې دهغه چا نه وشي څوک چې وژدان لري،انسانيت پېژني،انسانانو ته دانسانانو په نظر ګوري.

متأسفانه چې دشام دمسلمانانو قاتلين ټول دانسانانو په شکل کې ډېر ستر وحشيان دي .

پوتين او اسد دواړه داسلام او مسلمانانو ستر دښمنانان دي خو دشامي مسلمانانو پرضد ددوئ دواړو دروان وحشت اصل محرک مادي خبرې دي نو ځکه دا خبره پرځای ده چې دشامې مسلمانانو لپاره داسد او پوتين په پرتله دلبنان حزب الله او دايران پاسداران انقلاب زيات خطرناک دي؛دوئ دسني مسلمانانو قتل ؛تعذيب او بې عفته کول عبادت ګڼي؛نو ځکه ددوئ جنګ عقيدوي دی او ځاني تلفات يې داسدي فوځ په پرتله زيات دي.

دشام په روان جنګ کې دحزب الله نېږدې ٣زره او دايراني ملېشو د ١٠ زرو نه زياتو جنګيالو خپل ژوند له لاسه ورکړی ددوئ هر څه عقيدوي او په مذهبي تعصب ولاړ دي نو ځکه دپاسداران انقلاب يو مشر- جنرال جوادغفاري دحلب دسقوط نه وړاندې ويلي و :چې بايد دشرقي حلب نه هيڅوک هم وتلو ته پرې نه ښودل شي او ټول په حلب کې په اجتماعي ډول ووژل شي؛پدې کې ديو تن دژوندي پاتې کېدلو اړتيا هم نيشته او نه دوئ ددې وړ دي چې ژوندي پرېښودل شي،،

جوادغفاري ته د ٢٠١٥ م کال په اکتوبر کې هغه مهال دشام دپاسداران انقلاب او نورو ملېشو مشري ورکړل شوه چې کله په شام کې ددې ملېشو مشر حسين همداني دمجاهدينو په يو راکټي بريد کې ووژل شو.

حلب ته دورننوتلو سره سم چې اسدي فوځ؛ايراني او لبناني ملېشو په لارو کوڅو اوسرکونو هر په نظر راتلونکی انسان ووژلو نو ترځنګ يې له کورونو نه دخلکو دراويستلو او بيا يې دذبح کولو وحشي لړۍ هم روانه وساتله ددسمبر په ٢٢ مې نېټې چې دحلب دسقوط ړومبۍ ورځ وه دښار په الصالحين؛العامريه؛صلاح الدين؛سيف الدولة او بستان القصر نومې مختلفو برخو کې دې ملېشو ٧٩ مسلمانان ددار په تختو راوزړول.

دبشر دحقوقو بین المللي مبصر-
انور مالک ویلي دي چې په حلب کې اسدي فوځ او ایراني ملېشو دکوچنیانو دعامه وژنې او دمېرمنو دبې عفته کولو منظمه لړۍ پیل کړیده نو ځکه دحلب پاکو پېغلو دخپلو ورونو او پلرونو نه غوښتي دي چې ددوئ کورونو ته دوحشي فوځیانو او ملېشو دراتلو پرمهال دې دوئ ووژني ترڅو ددې وحشیانو له لورې دبې عفته کېدو نه خوندي پاتې شي؛ددې سپېڅلو مسلمانو پېغلو پلرونو او ورونو په قطر کې دمېشت مصري عالم ډاکټریوسف القرضاوي په مشرۍ کې دعلماءو شورى ته خط لېږلی دی او ورنه یې  فتوی غوښتې ده چې آیا دخپلو لوڼو اوخویندو دعزت ساتنې په موخه دهغوئ قتلول جواز لري که نه؟

دمسلمانانو لپاره دردونکې او دټولې نړۍ لپاره دشرم نه ډکه خبره داده چې په حلب کې دابشري ناورین ټوله نړۍ په خپلو سترګو ویني او دحلب دکنډوالو نه دترحم او پناه غوښتلو مظلوم اوازونه او درد نه ډک آهونه په خپلو غوږ ونو اوري بیا هم نړۍ پدې هرڅه داسې چپه خوله ده ته به وایې چې په  حلب کې دا وحشت او ظلم دانسانانو پرضد نه بلکې دکوم داسې مخلوق پرضد روان دی چې دنړۍ دانسانانو روسره هیڅ تړاو نشته؛ دملګرو ملتونو په نوم داداري رخصتېدونکي مشر بان کي مون وویل چې رښتیاداده چې حلب دخپلو اوسېدونکو لپاره په دوهم جهنم بدل شویدی.




دنړۍ دامن ټېکدارې امریکا هم دخلکو په سترګو کې دخاورې اچولو هڅې وکړې او دامریکا ولسمشر بارک اوباما یواځې په همدې بسیا وکړه چې(په حلب کې په لوړه کچه دانسانانو دوژل کېدو ټوله پړه دبشارالاسد ددولت،ایران او روسې پرغاړه ده.

داوباما دا خبره دبشارالاسد ددولت،دایران یا روسې دملامتولو لپاره نه وه بلکې ددې لپاره وه چې پدې طریقې خپل منافقت پټ کړي او نړۍ کې ځان ددې بدنامۍ نه بچ کړي او نړۍ ته دا وښایې چې ګینې موږ هم په حلب کې دروان وحشت سخت مخالف یوخو ددې وحشت ودرول مو دتوان نه بېرون دي.

حال دا چې داسې نده؛دامریکا دولس مشر دا څرګندونې په اصل کې داسلام او مسلمانانو پرضد ددوه و سترو صلیبي زبرځواکونو دخپل منځۍ جوړ جاړي یوه لویه نښه ده.

په ۲۰۰۳م کې چې امریکا پرعراق دقبضې لپاره یرغل کاوه نو  سره له دې چې عراق دروسې حلیف و خو چې امریکا پدې اسلامي هېواد یرغل کاوه نو روسیه بیخي چپه خوله وه او دامریکا ددې سراسر ناوړه عمل په مقابل کې یې هیڅ عکس العمل او دصدام حسین نه کوچنی ملاتړ ښکاره نکړ بلکې برعکس یې په یو اېن او کې پرعراق داتحادیانو دقبضې دجواز لپاره دوړاندي شوې طرحې په حق کې رایه اچولې وه.

په ۲۰۱۱م کې چې دشام ولس دبشارالاسد دظلمونو پرضد قیام وکړ نو امریکاپه ډېرتاکیدویل چې باید دقیام کونکو مرسته وشي او دبشارالاسد زورواکۍ ته دپای ټکي کېښودل شي .

ډېروخلکودامریکادا څرګندونې پدې معنی اخستی چې ګینې امریکا به ددې پاڅون کوونکو ترشا ودرېږي او دوحشي دیکتاتور بشارالاسد په راپرځولو کې به په ربښتیا مرسته وکړي خو په عمل کې بیا دامریکا منافقت ټولې نړۍ ته روښانه شو او دا هرچاته معلومه شوه چې دامریکا هدف دبشارالاسد داداري رانسکورول نه بلکې دبشارالاسد واکمنۍ ته طول ورکول او دده واک ته دطول ورکولو نه په استفادې پدې هېواد کې تر اوږدې زمانې دداخلي جنګ جاري ساتل ؛دمسلمانانو ددې تاریخي هېواد تباه کول او له همدې لارې په ټول ختیځ کې دشیعه او سني فرقه ایز، نه ختمېدونکي جنګ ته لار برابرول دي.

امریکا چې په پیل کې داپوزیسیون په نوم دبشارالاسد مخالفینو سره مرستې وکړې نو هدف یې واک ته ددوئ رسول؛ددیکتاتور له منځه وړل او ولسواکي یا جمهوري نظام راوستل نه و بلکې دوئ ددې جوګه کول و چې دبشارالاسد پرضد په ټول هېواد کې جنګ جاري وساتلای شي خو کله چې دوئ قوي شول؛ دبشار الاسد واک دهېواد دځلورمې برخې نه هم کمو سیمو ته

محدود او د۲۰۱۵ م کال په دسمبر کې
يې سقوط تقريباً يقيني شو نو امريکا په
همدغه وخت کې شاته شوه او داسې
پاليسي يې غوره کړه لکه چې دشام
دستونزې سره دامريکا هيڅ تړاو نه وي
او نه يې ورسره څه لېوالتيا وي ؛ځان يې
بيخي بې طرفه کړ چې هدف يې ډګر ته
دروسي او ايران راوستل او له دې لارې
ببرته دبشار الاسد ملا مضبوطول و چې
همداسې و هم شول.

روسي دامريکا دهمدې بې طرفۍ
نـه پـه استفادې پـه شـام کـې فـوځي
مداخلـه وکـړه؛ د۲۰۱۵م ددسـمبر پـه
اواخرو کې دروسي جنګي طيارو دشام
په ښارونو بمبار پيل کړ او خپل لوی
سمندري جازونه يې دطرطوس بندرګاه
ته راورسول خو امريکا دروسې په مقابل
کـې کـوچنی عملـي عکـس العمل هـم
ښکاره نـه کـړاو شـامي مسـلمانان يـې
داسدي؛ايراني او روسي ليوانو خولو تـه
پرېښودل.

خوک چې دا وايې چې پـه حلب
کـې امريکـا دروسـې پـه مقابـل کـې
شکست وخوړ او روسيه برلاسې شوه
دادحقيقت نه ډېره لرې خبره ده؛پـه دې
دواړو کې يو هـم شکسـت خـوړونکی او
بل برلاسی ندی بلکـه دا ددواړو شريـک
پروګرام دی او په شريکه بـه يـې پـرمخ
بيايي.

په حلب کې په روان وحشت چې
دامريکا او غربي نړۍ چوپتيا او رضايت
وکتل شي نو داسې ښکاري چې رښتيا
هم دروسې او دامريکـا پـه مشرۍ کـې

لويديځ ترمنځ پټ تړون رامنځته شويدی.

امريکا په شام کې دروسانو او دروسانو داتحاديانو بشارالاسد او دايران غالب کولو پرېکړه کړيده او ددې مقابل کې روسانو په موصل کې دامريکايي او عراقي فوځيانو سره دمرستې چمتو والی ښودلی دی.

له بده مرغه چې په شام کـې دروسـانو او پـه عـراق کـې دامريکايـانو دغلبـې راوسـتلو پـه جنګونو کې ايراني فوځونه او ملېشې دروسانو او امريکايانو سره اوږه پـه اوږه دمسلمانانو پرضد جنګېږي او دمسلمانانو دقتل عام او دابادو ښارونو په کنډوالو دبدلېدلو نـه پـس پـه دواړو ځـايونو کې دروسانو او امريکايانو سره يوځای دخوښۍ جشـنونه لمـانځي او ترڅنـګ يـې ښـه پـه سـپين سترګۍ دمستقبل په اړه دخپلو ناکارو ارادو په څرګندونې کوي.

دايران دولتي اژانس ارناسره په مرکه کې دايران پاسداران انقلاب مرسـتيال مشر۔ جـنرال حسين سلامي ويلي دي چې دحلب فتح ديمن او بحرين دازادی پيلامه ده ؛هغه چې په تونـدې لهجې غږېدلو ويې ويل چې دبحرين ولس به ژر دکوچنۍ حـاکمې ډلـې نـه ازاد شي او ديمـن او موصل اوسېدونکي به ژر دازادۍ نه پس دخوښۍ جشنونه ولمانځي.

دايران روان سياست او عزايمو ته چې وکتل شي نو نه يـواځې شام بلکـې دټـولې سيمې مستقبل خوفناک ښکاري او داخبره يقين ته پرېوځي چې دايران داتومې پروګرام پـه اړه دامريکا او نور لويديځ نرمي ديوځانګړي هدف لپاره وه چې ورو ورو يې نتايج رامخې ته کېږي.

لويديځ اوس په ډېر چل او هنر ايران رامخې ته کوي او دعربي هېوادونو دولتونه او مشران بدناموي؛هماغه عربي مشران چې يو وخـت دغـرب دسـختو نـږدې دوسـتانو څخـه ګڼـل کېـدل اوس په لويديځوالې مېډيا کې ددوئ پرضـد سخت منفـي تبليغـات روان دي او پـه هماغـو بـدو نومونو يې يادوي په کومو به يې چې وړاندې دايران حاکمان او مذهبي مشران يـادول ؛دمنځنـي ختيځ اوسنو حالاتو ته چې سرې زير شي نو بيخي داول نړيوال جنګ نه دمخه او وروسته حالت ته ورته ښکاري بس فرق همدومره دی چې دنړيـوال جنـګ پرمهـال پـلان جـوړونکی فرانسـه او انګلستان و چې دعثماني خلافت ترکان او دشريف مکه په مشرۍ کې يې عربـان سره وجنګـول او عثماني خلافت ړنګ شو او دا ځل پلان دامريکا او روسې دی چې ټـول شيعه ګـان پـه ايـران راټولول او دايران ښه تقويه کول غواړي ترڅو دمنځنې ختيځ دټولو سني هېوادونو پـه مقابـل کـې دجنګېدلو جوګه شي او په ټولې سيمې کې دشيعه او سني نه ختمېدونکی جنګ پيل شي.

نو دا اوس په ايران ده چې په سيمې کې دامـن لپـاره ګامونـه پورتـه کـوي او کـه داسـلام ددښمنانو دشومو پلانونو ښکار کېږي.

روسان هم بايد پدې پوه شي چې که روان حشت ته ژر دپای ټکـی کېښـود او همداسـې يې جاري وساتلو نو په اسلامي نړۍ کې به سخت منفور ؛ بدنام او دټولـو مسلمانانو سره بـه پـه دښمنۍ اخته شي چې دابه ورته نه جبرانېدونکي تاوانونه ورسوي؛نو روسان بايـد روان وحشـت ته دپای ټکي کېږدي اود دضعيفې،ناکامې او منفورې اسدي اداري دبچ کولو په تمه دنړۍ دټولو ژمنو مسلمانانودنوې دښمنۍ نه ځان خوندي وساتي.

د افغانستان اسلامي امارت
د تعليم او تربيې او عالي تحصيلاتو كميسيون

# تعليم او تربيه د ژوندانه اړتيا !

پن مه برخه

**د استاذ مقام :**

په مخكنيو برخو كې مو تر يوې اندازې داستاذ مسئوليتونه وڅېړل ، دهغه شخصي ،ذاتي اوعلمي مواصفات، دهغه واجبات او مكلفيتونه ،دهغه علمي ،تعليمي او عقلي مهارتونه او دشاگردانو په وړاندې دهغه علمي او اخلاقي مسئوليتونه مو وليكل او ومو ويل چې استاذ كوم مواصفات بايد ولري ؟ له كوم ميتود اوطريقې څخه كار واخلي ؟ ، كوم وسائل په كار واچوي ؟ او بالآخره له وخت څخه څنگه گټه واخلي ؟ ترڅو خپل شاگردان په لږ وخت كې په مؤثره توگه وپوهوي اوخپل معلومات په يوه اسانه او ساده طريقه هغوی ته وړاندې كړي ، نو له دې ټولو تيرو تفصيلاتو څخه دا خبره څرگنديږي چې استاذ دټولنې داصلاح په ټولو اړخونو كې ډير مؤثر دی چې دټولنې دټولو ښيگڼو دساتلو او دټولنې ديوې نيكمرغه راتلونكي اميدونه ورپورې تړلي دي همداسبب دی چې داسلام سپيڅلي دين هم استاذ ته لوړ مقام وركړی او هم يې ځانگړي حقوق ورباندې لورولي دي تر څو ددې حقوقو څخه په گټې اخيستلو سره وكولای شي خپل مسئوليتونه په ښه توگه او داطمينان اوډاډ په فضا كې اداء او تر سره كړي ، البته داستاذ مقام په تيرو برخو كې هم يوڅه و ستايل شو خو داستاذ مقام ته د درناوي په خاطر دلته هم داستاذ مقام ته داسلام د مقدس دين له نظره لنډه كتنه كوو :

الله جل جلاله فرمايي : اعوذ بالله من الشيطن الرجيم (شهدالله انه لا اله الاهو والملائكة واولوا العلم) آل عمران : ١٨

يعنې شاهدي اداء كړې ده الله (د وحدانيت خپل ) پدې شان چې نشته هيڅ مستحق دعبادت مگرهمدی دی اوشاهدي اداء كړې ده پرښتو (دوحدانيت په اقرار سره) اوشاهدي اداء كړې ده خاوندانو دعلم ( د وحدانيت په اقرار سره ). الله جل جلاله لومړی له ځانه پيل كړی او بيا يې د پرښتواو په دريم ځل يې دعلم دخاوندانو يادونه كړې ده ، مطلب دعلم خاوندان يی له ځان او پرښتو سره يوځای ذكر كړي دي چې داپخپله دعلم او دعلم دخاوندانودستر فضيلت څرگندوی دی .

بل ځاي فرمايي : (قل هل يستوي الذين يعلمون والذين لا يعلمون ) الزمر : ٩-

ترجمه : ووايه (ای محمده!) آيا برابر دي سره هغه كسان چې پوهيږي ( خاوندان د علم) اوهغه كسان چې نه پوهيږي (جاهلان ) بلكه برابر نه دي .

دلته دعالم او جاهل پرتله په انكاري استفهام سره شوې ده چې مطلب يې دا دی چې عالم او جاهل هيڅ وخت نشي سره برابربدلای .

بل ځای الله تعالی فرمايي (يرفعِ الله الذين آمنوا منكم والذين أوتوا العلم درجات ) المجادلة : آيت ١١

ترجمه :پورته كوي الله هغه كسان چې ايمان يې راوړی له تاسې څخه (په اطاعت ،فرمانبرداری دده) او ( خاص پورته كوي ) هغه كسان چې وركړی شوی دی دوی ته علم په درجو او مرتبو كې.

په دې مبارك آيت كې الله جل جلاله دعلم خاوندانو (علماؤ) ته په نورو مخلوقاتو دلوړو درجاتو زيری وركوي .

همدارنگه كه چيرې د نبوي احاديثو په رڼا كې دعالم (استاذ)مقام ته كتنه وكړو ډير بې شميره حديثونه به دهغه د لوړ منزلت په باب ومومو دمثال په توگه :

رسول الله صلی الله عليه وآله وسلم فرمايی : ولكن بعثني معلماً ...لكن خو زه يې معلم را استولی يم .

دبخاری شریف په یوه حدیث کې راځي : خیرکم من تعلم القرآن وعلمه : یعنې ستاسو ډیر ښه اوغوره هغه څوك دی چې قرآن کریم زده کړي او نورو ته یی ور وښیي .

بل ځای رسول الله صلی الله علیه وآله وسلم فرمایي : یا أبا ذرلأن تغدو فتعلم آیة من کتاب الله خیرلك من أن تصلي مائة رکعة ولأن تغدو فتعلم بابا من العلم عمل به او لم یعمل به خیرلك من أن تصلي ألف رکعة .

ترجمه : اې ابوذره ! که سبایي دقرآن کریم یو آیت زده کړې تر دې بهتر ده چې سل رکعته لمونځ وکړې

او که بیا ولاړشې او دعلم یو باب زده کړې که عمل وربانديشوی وي او که نه وي شوی تر دې تاته بهتر ده چې یو زر رکعاته لمونځ وکړې .

په یو بل مبارک حدیث کې راغلي : خیرمن یخلف الرجل من بعده ثلاث ولد صالح یدعو له وصدقة جاریة یبلغه أجرها وعلم ینتفع به من بعده .

ژباړه : هغه غوره څیزونه چې یوڅوک یي ترشا پریږدي دادي : صالح زوی چې ورته دعاء کوي ، جاري صدقه چې أجر یې ورته رسیږي ،او هغه علم چې له ده وروسته ګټه وربانديې اخیستل کیږي.

ابن جماعة وایي که ورته وګورو دغه درې سره څیزونه دمعلم او استاذ په شان کې موندل کیږي صدقه جاریه دده ښوونه او افاده ده ، علم نافع دده سرمایه ده اونیکه دعاء خو دعلماؤ دود او دستور داسې ده چې خپلو استاذانو او مشائخو ته دعاء ګاني کوي .

او نور زیات شمیر مبارک احادیث دعلماؤ او استاذانو د فضیلت په هکله شتون لري چې دلته موږ همدومره کافي ګڼو.

هوکې داصحاب کرامو رضوان الله علیهم او سلف صالحینو رحمهم الله داسی آثار او نمونې تاریخ ثبت کړي چې د استاذانو او علماؤ داحترام او دهغوی لوړ مقام ته د درناوي په باب خورا حیرانونکي دي .

روی الشعبي رحمه الله : صلی زید بن ثابت رضی الله عنه علی جنازة ثم قربت له بغلته لیرکبها فجاء ابن عباس رضی الله عنه فأخذه برکابه فقال له زید : خل یا ابن عم رسول الله صلی الله علیه وسلم فقال ابن عباس هکذا یفعل بالعلماء والکبراء .

ترجمه : امام شعبي رحمه الله روایت کوي یوه ورځ زیدبن ثابت رضي الله عنه په یوه جنازه لمونځ وګذاره بیا د تللو په وخت کې خچر ورته نږدې راوستل شو او ابن عباس رضی الله عنه ورته راغی رکابونه یې ورته ونیول زید بن ثابت رضي الله عنه ورته وویل ای د رسول الله ـ صلی الله علیه وسلم دکاکا زویه پریږده ! ابن عباس رضی الله عنه ورته وویل : له مشرانو او علماؤ سره داسي کول ښایي .

قال الشافعي رحمه الله کنت أتصفح الورقة بین یدي مالك رحمه الله صفحاً رقیقاً هیبةً له لئلا یسمع رقعها .

ترجمه : امام شافعي رحمه الله وایي ما د امام مالك رحمه الله په وړاندې پاڼه کرار اړوله ترڅو هغه یې کړپهار وانه اوري .

قال الربیع رحمه الله والله ما اجترأت أن أشرب الماء والشافعي ینظر اليّ هیبةً له .

ترجمه : ربیع رحمه الله وایي : زما دې په الله قسم وي که به ما د امام شافعي رحمه الله په مخ کې له هیبته اوبه څښلای شوای .

داسلام خلیفه هارون الرشید څخه حکایت کوي چې هغه خپل زوی د وخت عالم اصمعي ته د تعلیم او زد کړې لپاره ور واستاؤ یو وخت خلیفه هارون الرشید ولیدل چې اصمعي اودس کوي او دده (خلیفه) زوی اوبه وراچوي نو خلیفه ورته وویل : ما خپل زوی دعلم او ادب د زدکړې لپاره تاته رالیږلی هغه ولې په یوه لاس اوبه نه دراچوي او په بل لاس ستا پښې نه مینځي .

همدا رنګه دنوموړي خلیفه په اړه حکایت دی چې د وخت نامتو عالم (کسائي) سره دهغه دوه زامن ( أمین او مأمون ) د درس په حلقه کې ناست وو یوه ورځ د درس څخه وروسته چې کله استاذ (کسائي) ولاړ شو نو دخلیفه دواړو زامنو د استاذ د پایزار سمولو سیالي پیل کړه اختلاف یې راغی بالأخره په دې متفق شول چې دیوې پښې یو کیږدي او د بلې پښې بل نو داخبره هارون الرشید ته ورسیدله نو کسائي یې ور وغوښت او ورته یي وویل چې ډیر عزتمن څوک دی؟ هغه ورته وویل : چې زه خو له ا میر المؤمنین څخه ډیر زیات عزتمن بل څوک نه پیژنم هارون الرشید ورته وویل : بلکه ډیر عزتمن هغه څوک دی چې له مجلس څخه پورته شي نو د پایزار په سمولو کې یې دمسلمانانو دوه ولیعهد شخصیتونه اختلاف کوي تر دې چې بیا دیوه یوه پایزار په سمولو سلا کیږي .کسائي ګمان وکړ

چې خلیفه په دې کار سره قهریدلی دی نو معذرت یې وغوښت خو خلیفة المسلمین ورته وایي که چیرې تاسو زما زامن منع کړې وای نو ما به بیا تاته تهدید کړی وای ځکه دوی مې د سالمې تربیې لپاره تاته حواله کړي دي ، بیشکه چې په دغه کار سره د استاذ دمقام لوړوالی څرګندیږی .

بل ځای داسی راغلي : وسئل الأسکندر لِمَ تکرم مُعلِّمک فوق کرامة أبیک ؟ قال ان أبي کان سبب حیاتي الفانیة ومُعلِّمي سبب حیاتي الباقیة .

له اسکندر څخه وپوښتل شول ولې خپل استاذ ته تر خپل پلار لا زیات قدر او عزت ورکوې؟ هغه په ځواب کې ورته وویل ځکه چې پلارمې د فاني ژوندانه سبب او استاذ مې د تلپاتې ژوندانه سبب دی .

دحضرت علي کرم الله وجهه په وصیتونو کې راځي :

من حق العالم علیک أن تسلم علی القوم عامة وتخصه بالتحیة وأن تجلس أمامه ولا تشیر عنده بیدک ولاتعمدن بعینیک غیره ولا تسار في مجلسه ولا تشبع من طول صحبته فانما هو کالنخلة تنتظر متی یسقط علیک منها شئ .

ژباړه : په تا باندې دعالم له حقوقو څخه دا دي چې خلکو ته به په عام لفظ سلام اچوې خو استاذ به ځانګړی یادوې دهغه په مخ کې به ځنګون ماتوې او چاته به بیا په لاس اشارې نه کوې اونه به هم له ده پرته بل چاته ګورې ، دده په مجلس کې به خوشحالي او خنداوې نه کوې او له اوږده مجلسه به یې نه ستړی کیږې ، هغه لکه دخرما ونه غوندې دی انتظار به ورته کوې چې کله به ورڅخه پرتا باندې خرماوې را توی شي .

د حسن بصري رحمه الله څخه راوړي چې هغه وایي : لو لا العلماء ( ای المُعلِّمون ) لصار الناس مثل البهائم ای انهم بالتعلیم یخرجونهم من حضیض البهیمیة الی أفق الانسانیة .

ژباړه : که چیرې علماء اومعلمان نه وای خلک به د څارویو په څیر وو یعنې دوی خلک د حیوانیت له ژورې څخه دانسانیت اوچت مقام ته را ایستلي دي.

هشام بن الحسن رحمه الله وایي : لأن أتعلم باباً من العلم فأعلِّمه مسلماً أحبّ الیّ من أن تکون لي الدنیا أجعلها في سبیل الله .



ژباړه : داچې زه دعلم یو باب زده کړم او بیا یې بل مسلمان ته ور وښیم ماته تر دې غوره ده چې ګرده دنیا زما وي اوهغه دالله په لار ه کې ولګوم .

ځینو صالحینو سلفو داسې فرمایلي دي :

لا ینال العلم ولا ینتفع به الاّ بتعظیم العلم وأهله وتعظیم الاستاذ وتوقیره .

ژباړه : علم نه موندل کیږي اونه وربانديې ګټه اخیستلی شي ترڅو دعلماؤ تعظیم او د استاذ عزت او توقیر نه وي .

حضرت لقمان رضی الله عنه خپل زوی ته نصیحت کوي ورته وایي:

یا بُنیّ جالس العلماء فان الله یحیي القلوب بنور الحکمة کما یحیي الأرض بوابل السماء.

ژباړه : زویکه ! له علماؤ سره ناسته پاسته کوه ! ځکه چې الله تعالی زړونه دحکمت په نور داسې ژوندي کوي لکه چې ځمکه له آسمانه په شیبو شیبو باران اوریدلو ژوندی کوي .

( بحار الأنوار اول ټوک ۲۰۴مخ ) .

البته داستاذ مقام او منزلت تر دې ډیر لوړ دی چې موږ یې په دې څو کرښو کې ولیکو یوازې د نمونې په ډول ورته اشاره وشوه ، په وروسته برخو کې به د استاذ د ځینو نورو حقوقو هم یادونه وکړوان شاء الله .

نوربیا...

د افغانستان اسلامي امارت
د تعلیم او تربیې او عالي تحصیلاتو کمیسیون

# د غور او بادغیس ولایتونو د تعلیمي چارو د هیئتې راپور

د ۱۴۳۷ هـ ق کال چې د ۱۳۹۵ لمریزکال سره سمون لري د ولایتونو د تعلیمي چارو د تفتیش او څیړلو لپاره د هیئتونو په لړکې د غور او بادغیس ولایتونو ته هم د دې کمیسیون له خوا یو هیئت چې په ترکیب کې یې محترم مولوی داد محمد (حکیمي) او محترم ملا عزت الله اخند شامل وو ولیږل شول.

نوموړی هیئت په ۳ د رجب المرجب ۱۴۳۷هـ ق چې د ۱۳۹۵ لمریزکال دوري (حمل) د میاشتې له ۲۲ سره برابرځ خپل سفر د غور ولایت ته پیل کړ د غه هیئت ته مو هغه د تفتیش موارد چې د دې کمیسیون له خوا ترتیب شوي ول ورکړل تر څو هغو ته په کتنې سره د نو موړو ولایتونو تعلیمي او ښوونیزې چارې بر رسي کړي او د هغو په رڼا کې خپل معلومات کمیسیون ته وسپاري د مواردو یوه کاپي ستاسو حضورته هم وړاندې کوو:

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## د ولایاتو لپاره د تعلیم او تربیې او عالي تحصیلاتو کمیسیون د خپل ځانګړي هیئت د تفتیش موارد

(۱) : د مربوطه ولایت ټولې تعلیمي اداري لکه کلیوالي مدرسې، دیني لیلیه مدرسې، دارالحفاظونه او مکاتب چې د اسلامی امارت د کار په ساحه کې موجود دي سروې کړل شي.

(۲) : د پورته تعلیمي ادارو حالت او کیفیت به له نږدې څخه پخپله ګوري او کوشش دې وکړي تر څو د شاګردانو علمي سویه، اخلاق، آداب، او د نصاب مضامین او ترتیب مطالعه کړي.

(۳): د لیلیه مدارسو لپاره د نوي تعلیمي نصاب معلومات وشي چې تر کومه حده په کوم مدارسو کې عملي شوی دی او په کومو کې چې ندی عملي شوی د هغو علتونه څه دي.

(۴) : په کومو ساحو کې چې مکاتب د اسلامي امارت په ساحه کې موجود دي د امکان ترحده به یې د مکاتبو د نظارت د (۱۹) مادو مطابق بر رسي کوي.

(۵): د ولایتي تعلیمي مسئول او د ولسوالیو د مسؤلینو (مدیرانو) په اړه به معلومات ترلاسه کوي چې کوم کسان فعال او د خپل مسؤلیت په سرته رسولو کې هلې ځلې کوي او کوم یې غیرفعال دي؟

(۶): نصاب، اصلاحي اوراق، اداري مواد، مکتوبونه او نور هدایات رسیدلي او که نه.

(۷) : تعلیمي مواد لکه کتابونه، کتابچې او قلمونه رسیدلي او کنه؟

(۸) : نقدي عوائد او مصارف وکتل شي چې پوره او په خپل وخت رسیدلي او کنه، او څنګه او چیرته مصرف شوي دي؟

(۹) : نقلیه او مخابراتي وسائل وکتل شي او کیفیت یې معلوم کړل شي.

(۱۰) : معلومات وشي چې د نظامي مسؤلینو همکاری څومره ده او د نظامي مسؤلینو څخه هم د تعلیم او تربیې په اړه معلومات وشي چې دوي له تعلیمي کارونو څخه څومره مطمئن دي؟

(۱۱): د علماء کرامو او عامه خلکو همکاري او نظر څنګه دی؟

(۱۲): ستاسو (د تفتیش هیئت) د لیدنو او کتنو په نتیجه کې د تعلیم او تربیې د پرمختګ لپاره کوم پلانونه او اقدامات مناسب او ضروري دي مونږ ته یې ولیکئ.

(۱۳) هیئت دې د ولس سره ډېرو اخلاقو له لارې د تشویق او ډاډ ګیرنې خبرې ترسره کړي ترڅو د امارت لپاره محبوبیت را جلب، او د ولس او امارت ترمنځ فاصله له منځه یوړل شي.

## هیئت داسې لیکي

دکار په لومړي پیل کې مو کوښښ وکړ ترڅو دغور ولایت له نظامي مسئول او والي حاجي مولوي عبد الصبور صاحب سره ووینو نو هغه ؤ چې له نومړي سره مو په شینکوټ ولسوالي کې ولیدل.

په دغه لیدنه کې دولایت دکمیسیون رئیس او نور ډېر دلګي مشران هم حاضر وو ددوي سره مو ددې ولایت د تعلیمي چارو په هکله خبرې وکړې او معلومات مو تر لاسه کړل والي صاحب وویل چې لږ وخت کیږي چې ماته دغه مسئولیت را په غاړه شوی ځکه زیات معلومات راته نشته او مونږ ته یې د بشپړې همکارۍ وعده را کړه نو ددې شینکوټ ولسوالۍ څخه مو پیل کړه ددې ولسوالۍ د معارف مدیر مولوی سید احمد را سره ؤ او د ولایت شرائطو ته په کتني سره مو دکار پلان داسې ترتیب کړ:

د ولسوالیو او ولایتئ تعلیمي مسئولینو په ګډون د هرې ولسوالۍ تعلیمي اداري، دیني مدارس، دار الحفاظونه ،ښوونځي او کلیوالي مدرسې به له نږدې ګورو او په دې ادارو سر بیره به له علماء کرامو، د ولسي خلکو له مشرانو او مخورو کسانو سره هم کتنه کوو نو لومړۍ کتنه مو د شینکوټ له ولسوالۍ څخه شروع کړه.

## د شینکوټ ولسوالي:

د شینکوټ په ولسوالۍ کې په کافي اندازه دیني لیلیه مدرسې او عصري اداري موجودې وې چې موږ له نږدې له ډېرو څخه پخپله لیدنه وکړه کیفیت یې د اطمنان وړ ؤ چې د مثال په توګه لاندنۍ مدرسې یادولای شو:

- دارالعلوم حقانیه:

ددې مدرسې له شیخ الحدیث مولوي نظرمحمد صاحب سره مو ولیدل په دې مدرسه کې(۴) استاذان او (۲۰۰) لیلیه او نهاریه شاګردان وو او څو ورځې مخکې دلته دفاضلانو دستار بندي هم شوې وه.

خلک دولسوالۍ د معارف له مدیر څخه خوښحاله وو او ویل یې زموږ احوال اخلي.

اقتصادي ستونزې یې درلودې ځکه غرنۍ سیمه وه له اسلامي امارت څخه یې د مرستې هیله درلوده.

- دارالعلوم مظهریه:

د مدرسې مهتمم مولوي نور محمد صاحب او نورو استاذانو سره مو ولیدل په نومورې مدرسه کې **۵** نفره استاذان او له ۲۰ تر ۷۰ اویا وو تنو شاګردان وو د شاګردانو اخلاق او اداب یې برابر وو او علمي سویه یې هم ښه وه.

- محمدیه مدرسه:

په دې مدرسه کې مو دخیر الاول صاحب او نورو استاذانو سره ولیدل **۳** تنه استاذان او **۲۰** تنه شاګردان یې درلودل مدرسه یې ښه فعاله وه او شاګردان یې صالح کسان وو

.

- دارالعلوم جهادیه:

ددې مدرسې مهتمم مولوي فضل ربي صاحب او نورو استاذانو سره لیدنه کتنه وشوه **۵** نفره استاذان او ۸۰ تنه شاګردان موجود وو مدرسه یې ښه فعاله او شاګردان یې ښه صالح کسان وو د اسلامي امارت سره یې بشپړ اخلاص درلود.

- مخزن العلوم مدرسه (تشتک):

دلته مو له مولوي عبد المنان صاحب سره او دکلي له مخه ورو او سپین ږیرو سره ولیدل د تعلیمي چارو په هکله مو ورسره خبرې وکړې هغوی مو لا زیات تشویق کړل. په مدرسه کې **۲** تنه استاذان او **۲۹** تنه شاګردان وو.

- مدرسه فخر المدارس(آب پران):

ددې مدرسې شیخ الحدیث مولوي محمد حسن صاحب او نورو استاذانو سره لیدنه کتنه وشوه د مدرسې د شاګردانو او د محلې د خلکو له خوا زموږ تود هرکلی وشو په دې مدرسه

کې ۴ تنه استاذان او نږدې سل (۱۰۰) تنه شاګردان وو چې د حدیث شریف دوره هم پکې کیدله.

- مدرسه دارالفیوض (پیرک):

دلته مو هم ددې مدرسې مهتمم مولوي ګل محمد صاحب او نورو استاذانو سره لیدنه کتنه وشوه مجلس ورسره وشو په دې مدرسه کې ۲ تنه استاذان او ۴۰ تنه شاګردان وو، ژوند یې ښه خوښحاله ؤ.

- مدرسه مولوی فیض الحق (سر پیرک):

ددې مدرسې له استاذانو سره مجلس وشو او ۲ تنه استاذان او ۴۰ تنه شاګردان یې درلودل.

- دارالعلوم حمیدیه:
- دمولوی فیض الله صاحب او نورو استاذانو سره مو مجلس وشو او په دې مدرسه کې ۳ تنه استاذان او ۲۰ تنه شاګردان وو، ښه استعداد یې درلود.
- مدرسه اویس قرني رضی الله عنه:
- دلته مو هم ددې مدرسې مهتمم مولوي بسم الله صاحب او نورو استاذانو سره لیدنه کتنه وشوه مجلس ورسره وشو په دې مدرسه کې ۲ تنه استاذان او ۷۸ تنه شاګردان وو سیرت او صورت یې ډیر برابر وو.
- مدرسه مظهریه (سنګان):

ددې مدرسې له مهتمم او استاذانو سره مجلس وشو او ۲ تنه استاذان او ۷۰ تنه شاګردان یې درلودل.

- مدرسه دیوبندي:

دلته مو هم د مولوي سعد الدین صاحب او نورو استاذانو سره لیدنه کتنه وشوه او د محلې د خلکو سره مجلس وشو د تعلیمي امورو په هکله مو مشورې سره شریکې کړې، په دې مدرسه کې ۳ تنه استاذان او نږدې ۳۰ تنه شاګردان وو.

همدارنګه ددې ولسوالۍ له ځینو عصري ښوونځیو او ادارو څخه مو هم لیدنه وکړه د کاکوري (صاحبي صاحب) لیسې ته ورغلو ددې لیسې له مدیر محمد خان او نورو استاذانو سره مو ولیدل د عصري علومو په باب مو د اسلامي امارت پالیسي ورته روښانه کړه په لیسه کې د اسلامي امارت قوانین او لوائح عملي وو ۲ تنه استاذان یې د دیني علومو د تدریس لپاره ګومارلي وو تر څو دیني مضامین لکه تعلیم الاسلام، سیرت، او قرآنکریم ورته تدریس کړي.

په مجموع کې ددې ولسوالۍ خلک له اسلامي امارت څخه راضي وو. او زیاته خوشبیني یې لرله

او په دغه ولسوالۍ کې په مساجدو کې (۳۰۰) بابه کلیوالي مدرسې موجودې وې چې (۳۲۰) تنه استاذان او (۲۳۰۰) تنه شاګردان یې درلودل.

## تیوره ولسوالي:

په شینکوټ ولسوالۍ کې د کار له خلاصیدو او تفتیش څخه وروسته د تیورې ولسوالۍ ته راغلو دلته مو ددې ولسوالۍ د تعلیمي چارو له مدیر مولوي عبد اللطیف سره ولیدل او له هغه سره یو ځای مو په کار پیل وکړ څرنګه چې دلته هم دیني مدارس او کلیوالي مدرسې موجودې وې له لاندې مدرسو څخه مو لیدنه وکړه:

- حنفیه مدرسه:

ددې مدرسې له مهتمم مولوی عبد الکریم صاحب او استاذانو سره په داسې حال کې چې د منطقې سپین ږیري هم را بلل شوي وو مجلس وشو د تعلیم په برخه کې مو مشورې سره شریکې کړې او په دې مدرسه کې ۴ تنه استاذان او ۳۵ تنه شاګردان وو چې لسمه درجه (موقوفةعلیها) یې هم درلوده.

- مدرسه عمر فاروق رضی الله عنه:

دلته مو هم ددې مدرسې له مشر استاذ مولوي محمد طاهر صاحب او نورو استاذانو سره لیدنه کتنه وکړه مجلس ورسره وشو په دې مدرسه کې ۲ تنه استاذان او ۲۵ تنه شاګردان وو.

- مدرسه فاروقیه:

د محترم مولوي عبد الحی او یو بل استاذ سره مو ولیدل مجلس ورسره وشو او ۲۸ تنه شاګردان یې درلودل.

- مدرسه مفتاح العلوم:

دمحترم مولوي ابو الفضل سره مو ولیدل مجلس ورسره وشو او ۴ تنه استاذان او ۷۲ تنه شاګردان یې درلودل.

- مدرسه منبع العلوم:

دمحترم مولوی شمس الحق صاحب سره مو ولیدل مجلس موورسره وکړاو ۲تنه استاذان او ۲۸ تنه شاګردان یې درلودل.

- مسجد جامع یخن:

دغه جامع مسجد ته ورغلو او له محترم مولوی عبدالرحیم صاحب سره مو ولیدل د تعلیم په باب مو مشورې سره شریکې کړې دلته هم ۱۵ تنه شاګردان په لوست لګیاوو .

- مدرسه نرمي (دځای نوم دی):

دلته مو هم له مولوي عبدالله صاحب او نورو استاذانو سره لیدنه وشوه په دې مدرسه کې ۲ تنه استاذان او ۹۰ تنه (ذکور او اناث) شاګردان وو .

- مدرسه جهادیه یخن:

د محترم مولوي حبیب الله صاحب سره مو ولیدل مجلس ورسره وشو او ۲۰ تنه شاګردان یې درلودل.

- مدرسه پشت تنګي (د ځای نوم دی):

دلته مو دمحترم مولوي عبدالقیوم صاحب سره ولیدل مجلس ورسره وشو او ۳۰ تنه شاګردان یې درلودل.

- مدرسه ضیائیه (ګله دیوار)

دمحترم مولوی ضیاؤالحق صاحب سره مو ولیدل مجلس ورسره وشو او یو بل استاذ یې هم درلود او ۳۷ تنه شاګردان یې لرل.

- مدرسه قلعه یامان (دځای نوم دی)

دمحترم مولوی محمددین صاحب او دکلي له سپین ږیرو سره مو ولیدل مجلس ورسره وشو او دوی درې تنه استاذان او (۱۰۰) تنه شاګردان درلودل.

- مدرسه شمس المدارس:

دلته مو دمحترم مولوی عبدالکریم صاحب او د نورو مدرسو له استاذانو سره د جمعې له لمانځه وروسته ولیدل مجلس ورسره وشو چې ښه مفید او ګټه ورؤ په تعلیمي چارو کې مو مشورې سره شریکې کړې دوه تنه استاذان او ۷۵ تنه شاګردان یې درلودل چې ترلسمې درجې (موقوفة علیها ) پورې درسونه ویل کېدل.

.مدرسه سراج العلوم:

دمحترم مولوی سعدالدین صاحب او دکلي له سپین ږیرو سره مو ولیدل مجلس ورسره وشو په دې مدرسه کې یو تن استاذ او ۱۵تنه شاګردان موجود ووچې ورته دوره (موقوفةعلیها ) درجه هم دلته تدریس کېدله.

- مدرسه انصاري:

د محترم مولوي عبدالنصیر صاحب سره مو ولیدل مجلس ورسره وشو او مدرسه له اقتصادي پلوه کمزورې وه له اسلامي امارت څخه یې دمرستې غوښتنه درلوده دلته درې تنه استاذان او ۸۳تنه شاګردان موجود وو.

- مدرسه مخزن العلوم:

ددې مدرسې له مهتمم مولوی عبداللطیف صاحب او استاذانو سره دتعلیمي امورو په هکله مجلس وشو دتعلیم په برخه کې مو مشورې سره شریکې کړې او په دې مدرسه کې ۲تنه استاذان او ۴۴تنه شاګردان وو .

- لیسه چادر:

نوموړې لیسې ته ورغلو دلیسې له مدیر ملا عبد الصمد سره مو ولیدل دلیسې دتعلیمي امورو په اړه مو مجلس وکړ په داسې حال کې چې دمنطقې سپین ږیري او مشران هم موجود وو داسلامي امارت داصولو رعایت یې کړی وو په دې لیسه کې ۱۴ استاذان او تر سل تنه زیات شاګردان موجود وو .

- لیسه یخن:

دلیسې له مدیر محمد حسن خان سره مو ولیدل چې دمنطقې سپین ږیري او مشران هم موجود وو ددغې لیسې ساحه په دې نیږدو شپو ورځو کې داسلامي امارت لاس ته لویدلې وه داسلامي امارت د اصولو د رعایت وعده یې وکړه.

او په دغه ولسوالۍ کې (۲۹) بابه کلیوالي مدرسې موجودې وې چې (۱۰۹) تنه استاذان او (۲۷۲۸) تنه شاګردان یې درلودل

**دولینه ولسوالي:**

وروسته دولینه ولسوالۍ ته راغلو په داسې حال کې چې د نوموړې ولسوالۍ دمعارف مدیر هم حاضر ؤ په دې ولسوالۍ کې مو د لاندې تعلیمي ادارو څخه کتنه وکړه:

- مدرسه امام بخاري رحمه الله:

ددې مدرسې لـه مهـتمم مولاناصاحب او استاذانو سره د تعليمي امورو په هکله مجلس وشو د تعليم په برخه کې مو مشورې وکړې او په دې مدرسه کې ۲ تنه استاذان او ۱۵ تنه شاګردان وو.

- مدرسه عمر فاروق رضی الله عنه :

ددې مدرسې له مشر مولوي عبد الغني صاحب سره مجلس وشو او د تعليمي امورو په هکله مو مشورې وکړې او په دې مدرسه کې ۲ تنه استاذان او ۱۵ تنه شاګردان وو.

- مدرسه خليل:

دلته مو د محترم مولوي عبد الله صاحب سره وليدل مجلس ورسره وشو او دوه تنه استاذان او ۸۰ تنه شاګردان يې درلودل.

- مدرسه نانوه (دځای نوم دی):

دلته مو له مولوي محمد شريف صاحب او سپين ږيرو سره وليدل مجلس ورسره وشو او يو تن استاذ او ۲۲ تنه شاګردان يې درلودل.

- مدرسه مولوی حضرت عمر صاحب:

دلته مو له مولوي محمد صاحب سره وليدل مجلس ورسره وشو او يو تن استاذ او ۵ تنه شاګردان يې درلودل.

او په دغه ولسوالۍ کې (۱۲) بابه کليوالي مدرسې موجودې وې چې (۱۲) تنه استاذان او (۱۵۰) تنه شاګردان يې درلودل.

**نوټ :** په دې ولسوالۍ کې مفتوحه سيمه کمه او لږ وه خو ددې مفتوحه سيمې خلکو له امارت سره پوره اخلاص او همکاري ښودله.

ددې ولسوالۍ خلکو د تعليم له مدير څخه شکايت درلود چې کار ته نه دی حاضر شوی توجه ورته پکار ده

**د شهرک ولسوالي :**

بيا د شهرک ولسوالۍ ته راغلو او په دغه ولسوالۍ کې مو له لاندې تعليمي ادارو څخه کتنه وکړه :

- مدرسه نداء الجهاد :

دلته مو له مسئول مولوي محمد خان صاحب سره وليدل ۳ تنه استاذان او ۵۰ تنه شاګردان يې درلودل تر (موقوفة عليها) درجې پورې يې کتابونه ويل کيدل ترتيب يې ښه برابر ؤ دلته مو د منطقې له مشرانو سره هم مجلس وکړ مخلص خلک وو د هغوی غوښتنه دا وه چې.

- ➢ اسلامي امارت دې تل زمونږ پوښتنه کوي.
- ➢ د ولسوالۍ د تعليم مدير بايد تکړه سړی مقرر شي.

- ▪ دارالحفاظ استاذ فتح محمد :

په دارالحفاظ کې چې د (سبز زيارت) په ساحه کې يې موقعيت درلود د منطقې مشران مو راغوښتي وو په تعليمي موضوعاتو مو ورسره خبرې وکړې دغه منطقه دوه کاله کيږي د اسلامي امارت لاس ته ورغلې خلک يې د تعليم شائقين وو.

په دارالحفاظ کې ۱۰ تنه حافظان ليليه اوسيدل.

- مدرسه عمر فاروق رضی الله عنه:

دلته مو له مولوی محمد صاحب سره وليدل مجلس ورسره وشو او دوه تنه استاذان او ۲۷ تنه شاګردان يې درلودل.

- دهن انجه ښوونځی:

دلته مو د ښوونځي له مدير ملاجلال ، استاذانو او نورو سپين ږيرو سره وليدل مجلس ورسره وشو

د تعليم سره يې مينه درلوده او ۴ تنه استاذان او ۴۵ تنه شاګردان يې درلودل.

- مدرسه نور المدارس:
- دلته مو له مولوي نورمحمد صاحب سره او نورو قومي مشرانو سره وليدل مجلس ورسره وشو دوی او دغه راز شاګردان يې ښه جهادي خلک وو او س تأسيس شوې وه د کومک انتظار يې درلود .
- مدرسه حضرت عمر رضی الله عنه:
- دلته مو له مولوی حکمت الله صاحب سره وليدل مجلس ورسره وشو او دوه تنه استاذان او ۵۵ تنه شاګردان يې درلودل.
- مسجد نګار :
- دلته مو د مسجد له امام صاحب سره وليدل مجلس ورسره وشو او ددې ولايت د تعليم او تربيې رئيس

مولوي حفيظ الله هم راورسيد زمونږ هر کلي يي وکړ دتولک ولسوالۍ څخه هم ځيني استاذان راغلي وو مشورې مو سره ګډې کړې بيا ټول دتولک ولسوالۍ خواته روان شوو.

- په دې ولسوالۍ کې (۱۵) بابه کليوالي مدرسې موجودې وې چې (۱۵) تنه استاذان او (۱۸۵) تنه شاګردان يې درلودل.

**تولک ولسوالي**:

د شهرک ولسوالۍ څخه وروسته د مولوي حفيظ الله صاحب سره يوځای دتولک ولسوالۍ ته راغلو له عامو خلکو سره مو مجلسونه وکړل او دلته مو له لاندې تعليمي ادارو څخه ليدنه وکړه :

- **مسجد پای تنګي**:

دمسجد له امام مولوي عبد الرحمن صاحب او نورو استاذانو او دکلي له خلکو سره مو وليدل دوی زمونږ په ليدلو ډير خوښحاله شول په دې مدرسه کې ۳تنه استاذان او ۲۸ تنه شاګردان موجود وو.

- **مسجد قريه کاريز**:

دمسجد له امام مولوي محمد عمر صاحب سره مو وليدل دوی هم خوښحاله شول په دې مدرسه کې ۲تنه استاذان او ۲۰ تنه شاګردان موجود وو درسونه يې برابر وو تجويد په اهتمام سره ويل کيده.

- **مسجد سرتنګی مرغزار**:

له مولوي فضل الحق صاحب او دمحلې له خلکو سره مو وليدل دوی هم خوښحاله شول په دې مدرسه کې ۲تنه استاذان او ۳۴ تنه شاګردان موجود وو درسونه يې برابر وو.

- مدرسه نظامي:

دلته له مولوي محمد صاحب او د محلې له خلکو سره مو وليدل دوی هم خوښحاله شول مننه يې وکړه په دې مدرسه کې ۱ تن استاذ او ۳۷ تنه شاګردان موجود وو درسونه يې برابر وو.

- مدرسه ابوبکر رضی الله عنه (پای قلعه):

دلته مو له مولوي محمد اعظم صاحب او د محلې له خلکو سره وليدل مننه يې وکړه په دې مدرسه کې ۱ تن استاذ او ۲۰ تنه شاګردان نهاريه موجود وو.

- مدرسه ضياء المدارس:

دلته مو مولوي عبد الغنی صاحب وليد په دې مدرسه کې ۲تنه استاذان او ۲۰تنه شاګردان موجود وو.

- دارالحفاظ:

دلته مو د حاجي مولوی عبد الودود صاحب او د محلې له خلکو سره وليدل په دې مدرسه کې ۱تن استاذ او ۱۰تنه د حفظ شاګردان موجود وو.

- مکتب اسپ سبز:

دلته مو دمکتب له مدير عبد القدير او د محلې له خلکو سره وليدل په دې مکتب کې ۵تنه استاذان او ۵۰ تنه شاګردان موجود وو.

- مدرسه امام بخاري رحمه الله :

دلته مو له شيخ الحديث مولوي محمد طاهر صاحب سره وليدل په دې مدرسه کې ۲تنه استاذان او ۱۴ تنه شاګردان موجود وو.چې لويه دوره لوستل کيده.

- مدرسه عثمانيه:

دلته مو له مولوي عبد الکريم صاحب سره وليدل په دې مدرسه کې يو تن استاذ او ۲۲ تنه شاګردان موجود وو.

- **ليسه غورک منطقه سراج خان :**

دلښې له مدير او استاذانو سره مو وليدل وعده يې وکړه چې د اسلامي امارت اصول او ضوابط به عملي کوي دلته ۲۹ تنه استاذان او ۲۰۰ تنه شاګردان موجود وو.

وروسته بيا شيرجه منطقې ته راغلو دغې منطقې ۱۰ مدرسې او مساجد درلودل له علماؤ او سپين ږيرو سره مو خبرې وکړې خو ښحاله شول او دهرې ممکنې همکارۍ وعده يې وکړه.

وروسته بيا دجام غور منطقې ته راغلو دلته مو مجلس جوړ کړ علماء کرام او قومي مشران راغلي ول ډير په زړه پورې مجلس وشو خوښحاله شول او د پوره همکارۍ وعده يې وکړه دغې منطقې ۱۵ مدرسې او مساجد درلودل.

## چغچران ، د غور ولایت مرکز

وروسته بیا دولایت د تعلیمي رئیس د مرستیال مولوي مزمل او ځینو مدیرانو په ملګر تیا د غور ولایت مرکز چغچران ته راغلو دګله بید په منطقه کې له علماء کرامو لکه مولوي زکریا صاحب او مولوي عیسی محمد صاحب او قومي مشرانو سره مو خبرې وکړې ډیر خوښحاله شول بیا د عبد الله بن عمر مدرسې ته چې دارالحفاظ یې هم درلود ورغلو دغې مدرسې یوتن مدرس او یو تن د حفظ استاذ او ۱۲ تنه شاګردان درلودل چې ۱۱ یې حافظان وو د مرکز په مربوطاتو کې تقریبا ۲۰ مدرسې لیلیه او نهاریه موجودې وې.

## د غور ولایت د هیئتې او تفتیش خلاصه

تر ډیره حده مو تعلیمي اداري وکتلې تعلیمي او اخلاقي کیفیت یې برابر وو.

د مدارسو لپاره تعلیمي نصاب رسیدلی وو خو لا پوره عملي نه وو.

ځکه چې:

- ددې نصاب کتابونه زیاتره هلته موجود نه وو.
- استاذان او شاګردان ورسره عادت نه وو، اکثره درسونه د دایرو په ډول وو په مسجد کې به استاذ خپلو طالبانو ته سبقونه لوستل نو مو رډ د نصاب په هکله سپارښتنې ورته وکړې.

ښونځي د غور په ولایت کې یوازې په محدود شمیر د تیورې ، پسابند او تولک ولسوالیو کې موجود وو.

د غور ولایت د مسئولینو په اړه نظر دا دی:

۱. ولایتي مسئول مولوی حفیظ الله فعال ، تجربه کار او هوښیار سړی ؤ د مدیرانو مصارف او تعلیمي مواد یې پخپل وخت رسولي وو.

۲. د شینکوټ ولسوالۍ مدیر مولوي سید احمد صاحب ښه فعال با اخلاقه او خپلو کارونو ته متوجه ؤ مدارس او استاذان ورځني خوښ وو.

۳. د تیوره ولسوالۍ مدیر مولوي عبد اللطیف صاحب ښه فعال با اخلاقه کاریګر او د استاذانو د تائید وړ ؤ.

۴. د دولینه ولسوالۍ مدیر کار نه ؤ کړی او نه هم کار ته حاضر شوی ؤ چې باید عزل شي.

۵. د شهرک ولسوالۍ مدیرمولوی شهاب الدین کمزوری ؤ کار یې نه ؤ کړی او نه هم کار ته حاضر شوی ؤ چې باید منفک شي.

۶. د تولک ولسوالۍ مدیرمولوی احمد صاحب د کار شوق درلود خو تجربه یې نه وه .

۷. د چغچران مدیرمولوی حمید الله هم غیر فعال ؤ .

۸. معاون مولوي عبد الرحمن با تجربه سړي ؤ خو پخپله ساحه کې یې مفتوحه سیمه نه درلوده لږ کار شوی ؤ تعلیمي مواد کتابچې ، قلمونه ، او قرآن کریمونه رسیدلي وو.

اداري موادلکه لائحې ، مکتوبونه جدولونه او... رسیدلي وو.

د ولسوالیو د مدیرانو میاشتني مصارف ورکول کیدل.

د علماؤ همکاري کمزورې وه چې هغوی باید راجلب شي.

د نظامي مسئولینو همکاري لږ وه چې باید توجه ورته وشي.

## د بادغیس ولایت

کله چې د غور ولایت د مرکز او ولسوالیو له تفتیش څخه فارغ شوو نو د غور ولایت د تعلیمي مرستیال مولوي عبد الرحمن په ملتیا مو د بادغیس ولایت ته سفر وکړ لومړې د جوند ولسوالۍ ته راغلو چې د غور ولایت سره څیرمه په سرحد کې واقع ده.

په دې ولایت کې مو هم هغه کړن چاره عملي کړه کومه چې په غور ولایت کې مو کارولې وه یعنې تر ممکنه حده مو د تعلیمي ادارو څخه لیدنه وکړه او ورسره مو د ځینو مسئولینو ، قومي مشرانو او ولسي خلکو سره په لاندې ډول مجلسونه دائر کړل:

## د جوند ولسوالي

- منطقه الله یار ، مدرسه مولوی عبد البصیر صاحب:

په دې مدرسه کې د منطقې له مشرانو ، د مدارسو له استاذانو او علماء کرامو سره لکه مولوي عبد الظاهر صاحب او نورو سره لوی مجلس جوړ شو په تعلیمي امورو کې بحث وشو هغوی تشویق او زیات خوښحاله شول ، په دې منطقه کې

۸ مدرسې او مسجدونه وو چې له ټولو مدرسو څخه مو لیدنه وکړه .

- د مولوي حنیف صاحب او مولوي عبید ګل صاحب مدرسې :

دغه ګرځنده او سیارې مدرسې وې په خیمو کې یې ژوند کاوو په جهادي معرکو کې یې برخه اخیسته ، وروسته د مولوي حنیف صاحب په شمول د جوند ولسوالۍ د مولوي نظر محمد صاحب ځای ته راغلو چې د دې ولسوالۍ مدیر مولوي خدایداد هم دلته ؤ ټول یو ځای چې د منطقې سپین ږیري او ځیني علماء کرام لکه مولوي محمد غوث صاحب ، قاري دین محمد صاحب او نور هم دعوت شوي وو سره په یوه مجلس کې شریک شوو د تعلیمي چارو په هکله د نظریاتو تبادله وشوه دوی د تعلیم سره ډیره مینه ښکاره کوله زموږ په ورتګ خوښحاله شول بیا زه او مولوي خدایداد د محلې په ډیرو مسجدونو وګرزیدو او د سبقونو بهیر مو وکوت.

- مدرسه مولوی محمد اسماعیل (منطقه لالابای) :

په دې مدرسه کې ۲ تنه استاذان او ۵۵ تنه طالبان او سیدل ډیر نیک او صالح خلک وو.

- دارالعلوم ربانیه :

دا مدرسه چې پخپله د مدیر صاحب مربوط وه و مو لیدله او همداسې څو نوري مدرسې مو د مدیر صاحب مولوي خدایداد په ګډون وکتلې او له عامو خلکو سره مو ولیدل.

**ولسوالي قادس :**

وروسته د قادس ولسوالۍ ته راغلو چې د بادغیس ولایت تعلیمي مرستیال مولوي محمد نبي صاحب هم راسره ؤ د بادغیس ولایت د تعلیم او تربیې رئیس مولوی مطیع الله صاحب هم راغلی ؤ او د قادس ولسوالۍ مدیر مولوي محمد ابراهیم صاحب جهاد ته تللی ؤ له حاضرو مسئولینو څخه مو د دې ولایت د معارف په هکله و پوښتل ، معلومات مو تر لاسه کړل او بیا مو په هیئتي پیل وکړ.

- مسجد جامع مولوی احمد صاحب (د بادغیس ولایت د مرافعه محکمې رئیس) :

دغه مسجد ته د منطقې مشران ، علماء کرام رابلل شوي وو زموږ استقبال یې وکړ مولوي احمد صاحب ورته خبرې وکړې او خلک یې ښه متوجه کړل.

- مدرسه دارالجهاد :

دې مدرسې ته د منطقې مشران ، علماء کرام او د مساجدو امامان رابلل شوي وو

د تعلیم او تربیې د اهمیت په باب مو ورسره خبرې وکړې ډیر خوښحاله شول.

**ولسوالی تګاب عالم :**

- د حاجي راز محمد ځای :

د دې ولسوالۍ مربوط د حاجي راز محمد په ځای کې مو د منطقې مشران ، علمای کرام رابللی وو ښه خوندوره میلمستیا یې برابره کړې وه د تعلیم او تربیې د اهمیت په باب مو ورسره خبرې وکړې ډیر خوښحاله شول پخپله د دې ولسوالۍ تعلیمي مدیر چیرته په سفر تللی ؤ و مو نه لید .

بل مجلس مو د حاجي عبد الله صاحب پر ځای کې د منطقې مشران ، علماء کرام او د مساجدو امامان رابللي وو ډیر خوشحاله شول د اسلامي امارت څخه یې د مرستې انتظار درلود .

**ولسوالی دره بوم :**

- لومړی مجلس مو د سربازار په جامع مسجد کې جوړ کړ د منطقې مشران ، علماء کرام او د مساجدو امامان مو رابللي وو ډیر خوښحاله شول ، د اسلامي امارت تعلیمي اصول چې له موږ سره وو هغه مو ورته بیان کړل ، وروسته مو د نظامي مسئولینو او علماؤ څخه د ولسوالۍ د تعلیمي امورو په اړه معلومات تر لاسه کړل د ولسوالۍ له مدیر څخه یې شکایت درلود چې خپله د نده یې سر ته نه ده رسولې.

- دوهم مجلس مو د اخندزاده صاحب مطیع الله په ځای کې جوړ کړ د منطقې مشران ، علماء کرام او د مساجدو امامان مو رابللي وو کافي خبره ورسره وشوه ډیر خوښحاله شول همیشه یې د امارت د هیئت غوښتنه کوله.

په دره بوم ولسوالۍ کې دغه تعلیمي اداري موجودې وې :

۱. دیني لیلیه مدرسې ۴۵ بابه ، استاذان ۵۴ تنه او شاګردان ۲۵۸ تنه

۲. کلیوالي مدرسې ۱۳۵ بابه ، استاذان ۱۳۵ تنه او شاګردان ۴۱۷۵ تنه

**ولسوالي مقر :**

• لومړی مجلس مو د ولسوال ملا مرزا صاحب په ځای کې جوړ کړ د منطقې مشران ، علماء کرام او د مساجدو امامان مو رابللي وو د ولسوالۍ تعلیمي مدیر مولوي باران صاحب هم موجود ؤ د تعلیم په باب مو خبرې سره وکړې.

• دوهم مجلس مو د مولوی جان محمد صاحب په مدرسه کې جوړ کړ د منطقې مشران ، علماء کرام او د مدرسې استاذان موجود وو خبره ورسره وشوه. په نوموړې مدرسه کې ۳ نفره استاذان او ۵۰ نفره شاګردان موجود وو.

• دریم مجلس مو دجلندر په منطقه کې چې ولسوال صاحب هم راسره ؤ جوړ کړ د منطقې مشران ، علماء کرام راغلي وو او زموږ په ورتګ ډیر خوښ شو ل

د مقر ولسوالۍ ټولې تعلیمي ادارې:

۱. دیني لیلیه مدرسې ۱۲ بابه ، استاذان ۲۲ تنه او شاګردان ۲۰۵ تنه

۲. کلیوالي مدرسې ۱۴ بابه ، استاذان ۱۴ تنه او شاګردان ۴۸۵ تنه

**ولسوالي سنګ اتش :**

په دې ولسوالۍ کې مو په لاندې ترتیب مجلسونه او لیدنې تر سره کړې:

• لومړی مجلس مو د مولوي سیف الدین صاحب په مدرسه کې جوړ کړ په دې مدرسه کې د شیخ صاحب او د مدرسې د استاذانو په شمول د منطقې مشران ،علماء کرام موجود وو خبره ورسره وشوه د اسلامي امارت پالیسي ورته بیان شوه.

• دوهم مجلس مو په قریه شوری په جامع مسجد کې جوړ کړ مولوي حفیظ الله صاحب او د منطقې مشران ، علماء کرام موجود وو تفصیلي خبره ورسره وشوه. په نوموړې مدرسه کې ۲ نفره استاذان او ۷ نفره لیلیه شاګردان او ۴۰ تنه نهاري شاګردان موجود وو.

• دریم مجلس مو د کولارې په منطقه کې جوړ کړ د منطقې مشران ، علماء کرام او د مسجدونو امامان راغلي وو.

• څلورم مجلس مو په ترشیخ کې د مولوی عبد الرازق اخندزاده صاحب په ځای کې جوړ کړ

د منطقې مشران ،علماء کرام او د مسجدونو امامان راغلي وو.

د سنګ آتش ولسوالۍ ټولې تعلیمي ادارې:

۱. دیني لیلیه مدرسې ۳۴ بابه ، استاذان ۳۴ تنه او شاګردان ۴۵۰ تنه

۲. کلیوالي مدرسې ۱۵۰ بابه ، استاذان ۱۵۰ تنه او شاګردان ۴۲۱۰ تنه

**ولسوالي مرغاب :**

په دې ولسوالۍ کې لاندې کتنې تر سره شوې:

• قریه میران زي: دلته مو له مولوي عبد الصمد صاحب سره مجلس وکړ د منطقې مشران ،علمای کرام او سپین ږیري راغلي وو ، یوه نهاري مدرسه وه چې یو تن استاذ او ۷۰ تنه شاګردان یې لرل.

• دارالحفاظ رئیس صاحب تعلیمي ولایت :

په دې دار الحفاظ کې یو تن استاذ او ۲۰ تنه شاګردان وو.

• بل دارالحفاظ د رئیس صاحب تعلیمي ولایت

په دې دار الحفاظ کې یو تن استاذ او ۵۵ تنه شاګردان وو.

له دواړو څخه مو لیدنه وکړه لازم هدایات مو ورکړل.

• مسجد جامع پنیرک :

دلته مو له مولوي ضیاءالدین اخند زاده صاحب سره مجلس وکړ د منطقې مشران ،علماء کرام او سپین ږیري راغلي وو نوموړي مولوي صاحب ۴۰ تنه نهاري شاګردان لرل.

• مدرسه مولوی ګلبدین صاحب :

دلته مو له نوموړي مولوي صاحب سره مجلس وکړ د منطقې مشران ، علماء کرام او سپین ږیري راغلي وو په دې مدرسه کې یو تن استاذ او ۱۲ تنه شاګردان وو .

- مدرسه مولوی سید احمد صاحب:

دلته د بادغیس والي مولوی عبد الله صاحب ، د استخباراتو مسئول مولوي نظر محمد صاحب او نور دلګې مشران موجود وو کافي مجلس وشو د دوی وړاندیزونه مو واوریدل یو څه کار شوی ؤ او په راتلونکي کې یې د همکارۍ وعده وکړه

د مرغاب ولسوالۍ ټولې تعلیمي اداري:

۱. دیني لیلیه مدرسې ۵۰ بابه ، استاذان ۱۲۰ تنه او شاګردان ۱۲۴۴ تنه

۲. کلیوالي مدرسې ۲۴۳ بابه ، استاذان ۲۴۵ تنه او شاګردان ۴۲۰۰ تنه

## دغور ماچ ولسوالي :

په دې ولسوالۍ کې لاندې کتنې تر سره شوې:

په داسې حال کې چې محترم رئیس صاحب او دغور ماچ تعلیمي مدیر مولوي عبد الغفور صاحب را سره وو لومړی مو مدرسه صدیقیه وکتله.

- مدرسه صدیقیه
- دلته مو له مولوي اختر محمد صاحب سره مجلس و

کړ د منطقې مشران ،علماء کرام او سپین ږیري هم راغلي وو او له مولوي اختر محمد صاحب څخه مو د ده معلومات واخیستل هغه د خپل کار څخه راضي ؤ ، په دې مدرسه کې ۲ تنه استاذ ان او ۵۰ تنه شاګردان وو .

- مدرسه ملا انګور بای:

دلته مو له مولوي بسم الله صاحب سره ملاقات وشو د منطقې مشران او سپین ږیري هم راغلي وو په دې مدرسه کې ۲ تنه استاذ ان او ۴۲ تنه شاګردان وو اسلامي امارت ته ډیر خوشبین ول.

- مسجد حاجي اختر محمد

دلته مو له قاري علاؤ الدین صاحب سره ملاقات وشو د منطقې مشران هم وو

په دې مسجد کې یو تن استاذ او ۷۰ تنه (ذکور او اناث) شاګردان وو.

- مدرسه مولوي عبد الباري صاحب:

دلته مو له مولوي صاحب سره ملاقات وشو د منطقې مشران او سپین ږیري هم راغلي وو په دې مدرسه کې ۵ تنه استاذ ان او ۵۱ تنه طالبان وو.

- مسجد جامع مولوي ګلبدین صاحب:

دلته مو له مولوي سعد الدین صاحب سره ملاقات وشو د منطقې مشران او سپین ږیري هم راغلي وو دلته ۲ تنه استاذ ان او ۷۰ تنه طالبان وو.

دغور ماچ ولسوالۍ ټولې تعلیمي اداري:

۱. دیني لیلیه مدرسې ۱۰۰ بابه ، استاذان ۱۲۰ تنه او شاګردان ۱۳۰۰ تنه

۲. کلیوالي مدرسې ۱۴۰ بابه ، استاذان ۱۵۰ تنه او شاګردان ۲۰۰۵ تنه

## د با دغیس ولایت د هیئتې او تفتیش خلاصه :

✓ د دیني مدارسو لپاره تعلیمي نصاب رسیدلی ؤ خو مشکل دا ؤ چې درسونو د دائرو شکل درلود او له بله پلوه ځینې کتابونه هم هلته نه پیدا کیدل.

تعلیمي مواد لکه کتابچې، قلمونه ،قرآن کریمونه او ... رسیدلي وو او ولسوالیو ته ورکول شوي وو.

✓ اداري مواد لکه لائحې ، مکتوبونه ،اداري جدولونه او...رسیدلي وو .

✓ دولسوالیو میاشتني مصارف ورکول کیدل.

✓ دعلماء کرامو همکاري ښه نه وه باید هغوی را جلب شي.

✓ دنظامي مسئولینو همکاري موجوده وه.

✓ دولسي او قومي خلکو او مشرانو سره مو په هره ولسوالۍ کې په تعلیمي ادارو ،جامع مسجدونو او کلیو کې تر ممکن او ضروري حده مجلسونه جوړ کړل هغوی ته مو د اسلامي امارت تعلیمي پالیسي او هلې ځلې توضیح کړې دوی هم خوښحاله شول او د هرې ممکنې همکارۍ وعده یې وکړه.

**دبادغیس ولایت دتعلیمي مسئولینو په اړه:**

۱. دولایت تعلیمي رئیس مولوي مطیع الله صاحب ښه عالم او تجربه لرونکی سړی ؤ پخپله منطقه کې یې کار کړی ؤ دوه (۲) بابه دارالحفاظونه یې هم جوړکړي وو خو په نورو ساحو نه ؤ ګرزیدلی.

۲. دولایت معاون مولوي محمدنبي صاحب ښه باتجربه او په کار پوه سړی ؤ.

۳. دجوند ولسوالۍ مدیر مولوي خدایداد صاحب مخلص او با اخلاقه سړی ؤ خلک او د مدارسو استاذان ترې راضي وو.

۴. د قادس مدیرحاجي مولوي ابراهیم صاحب فعلا دجنګ په ساحه کښې ؤ خو رئیس ورڅخه خوشحاله ؤ.

۵. دتګاب عالم مدیر ملا محبوب آغا صاحب څخه هم خلک خوښحاله وو.

۶. ددره بوم ولسوالۍ مدیر مولوي نواب کار نه ؤ کړی له ساحې څخه یې احوال نه ؤ اخیستی بې تجربې او بې پروا سړی ؤ.

۷. د مقر ولسوالۍ مدیر مولوي باران صاحب خدمتګار سړی ؤ او خلک ترې خوشحاله وو.

۸. دسنګ آتش ولسوالۍ مدیر مولوي عبد العزیز صاحب خدمتګار سړی ؤ او رئیس ترې خوشحاله ؤ.

۹. د مرغاب ولسوالۍ مدیر مولوي امیرجان صاحب نیک سړی ؤ خو کار یې نه ؤ کړی.

۱۰. دغور ماچ ولسوالۍ مدیر مولوي عبد الغفار صاحب خدمتګار اونیک مخلص سړی ؤ او کار یې کړی ؤ.

**د هیئت نظر:**

دولایتونو والیان باید تعلیم او تربیې ته ډېره توجه وکړي وخت په وخت یې پوښتنه وکړي او کارونو ته یې متوجه وي او تر ممکنه حده دعلماء کرامو او خلکو په راجلبولو کې د تعلیمي ادارو مادي او معنوي مرسته وکړي.

۱. کوم تعلیمي مسئولین چې په کار کې یې غفلت کړی او په دې راپور کې یې یادونه شوې باید منفک او پرځای یې اهل او فعال خلک وټاکل شي.

۲. دمسئولینو نقلیه وسائط زیاتره زاړه او له کاره لویدلي وو باید توجه ورته وشي.

۳. نهاري مدرسې په کلیو او مساجدو کې زیاتې وې ددې لپاره دنصاب او درسي موادو ضرورت وو.

## پلچرخي: شاوخوا ۲۰۰۰ بندیان چې د قید موده یې پوره ده بې برخلیکه پراته دي

افغان غږ

**د هیواد په سرتاسر زندانونو کې لسګونه زره بندیان په یوه او بل نوم د بند شپې تیروي چې یو له هغو د پلچرخي محبس هم دی.**

**د دې محبس څخه ورځ تر بلې شکایتونه په پراخیدو دي چې شاوخوا دری اونۍ مخکې هم د دې زندان په اووم بلاک کې بندیانو د اعتصاب په توګه خپلې خولې هم ګنډلې وې.**

**په یاد زندان کې زندانیان وایي چې د ۲۰۰۰ څخه پورته زندانیانو د قید موده پوره شوې خو ګډ حکومت یې لا د خوشې کولو تابیا نلري.**

**همداراز بندیان شکایت کوي چې کوم چاته چې تخفیف لګیدلی وه هغه بیرته ترې اخستل شوی چې د داسې زندانیانو شمیر هم تر ۳۰۰۰ رسیږي.**

**دې ته ورته داسې زندانیان هم شته چې بې له کومې محکمې د یاد زندان شپې ورځې تیروي.**

**زندانیان د ناروغیو د نه علاج څخه هم ستونزې لري او د زندان مسؤلین په بې توجهي تورنوي.**

**ډېر بندیان وایې موږته په یو نفري یا شخصي- زندانونو کې ربړول څورول چې راکول کیږي، هغه زموږ د قید له مودې مستثنا کوي. پدې معنا که یو نفر په جلا خونه کې کلونه هم تیر کړي هغه د نوموړي د زندان له ټاکل شوی حبس څخه نه شماریږي.**

**همداراز په وار وار له یاد زندان څخه د سمتي ژبني تعصباتو اواز را پورته کیږي چې ګواکې هزارګان په پښتنو باندې بې دریغه شکنجې ظلمونه کوي خو د نورو ژبو ویونکي ترې مستثنا دي.**



# د ښایسته نومونو اثر

ژباړه : همایون عیسی خېل

ښایسته نومونه هغه دي چې په هغو کې لاندې ذکر شوو څو خبرو ته پاملرنه شوي وي او يو څو نورو څخه ځان ژغورل شوی وي.

۱ ...... د الله جل جلاله ذاتي يا صفاتي نوم سره د عبد يا امته لفظ زياتول ، لکه عبدالله ، عبدالرحمن ، عبدالغفار ، داسې نور يا داسې نوم وي چې په هغې سره د الله تعالی تعريف بيانيږي.

۲ .....د کوم پيامبر (ع) نوم دې وي لکه : يعقوب ، يوسف ، ادريس ، احمد، ابراهيم ، اسمعيل (عليهم السلام).

۳ .....د کوم مجاهد ، ولي او د دين خادم نوم وي چا چې د دين لپاره خپل سر او مال قربان کړی وي ، لکه عمر فاروق ، خالد ، عبدالقادر ، هاجره ، مريم ، ام سلمه ، سميه او داسې نور.

۴ .....د ديني جذباتو او نيکو خواهشاتو پر بنسټ وي، مثلاً په نني عصر کې د مسلمه امت بد مرغيو ته په کتو سره د خپل ځوی نوم عمر بن عبدالعزيز ، صلاح الدين او داسې نور کېښودل شي او ورسره دا تمنا وي چې زما ځوی به دا مظلوم امت بېرته په پښو دروي.

۵ .....يوې ديني خوشحالي ته په کتو سره يو نوم کېښودل شي ، لکه د قيامت واقعه دې بيانوله او دا آيت دې مخې ته راغی چې ژباړه يې دا ده:

،، کله چې د قيامت ورځ راشي نو د چا سره به د خبرو کولو جرات نوي ماسوا له هغو خلکو چې الله جل جلاله ورته اجازه ورکړې وي بيا به په دې ورځ څه خلک بدمرغه وي او څه خلک به نيکمرغه وي.

يعني د قيامت په ورځ به ټول انسانان په دوو ډلو تقسيميږي يوه ډله به بدمرغه وي او بله ډله نيکمرغه.

د دې لوستلو سره دې بې اختياره له زړه څخه دا دعا ووته چې يا الله جل جلاله ما او زما اولاد په دې سعيده ډله کې حساب کړې ، بيا الله جل جلاله درته ځوی درکړ او په هغه دې سعيد نوم کېښود.

اصلاً تاسې د خپلو خواهشاتو ، جذباتو ، آرزوګانو او د تمناګانو په اساس په شعوري ډول يا په غيرشعوري ډول د خپلو ځامنو نومونه ږدی ، او هغوی د خپلو خواهشاتو او آرزګانو مناسب ستريږي او قدرتي په عامو حالاتو کې هغه ستاسو د خوبونو تعبير جوړيږي.

۶ ....د اولاد لپاره انتخاب شوی نوم بايد د ښه مفهوم ، سپيڅلی، په ذهن او فکربانديې ښه اثر غورځونکی او د دين له اړخه مطلوب اثرات ورکونکي وي.

دا ټولې هغه خبرې وې چې د نوم کېښودلو په وخت ورته بايد پاملرنه وشي او د انتخاب شوي نوم لپاره د دې خبرو ترغيب ورکړل شوی دی . ځينې خبرې داسې دي چې د نوم کېښودلو پر وخت بايد ځان ترې وژغورل شي (هغه لاندې ذکر شوي دي

(۱) ..... باید یو داسې نوم نوي چې هغه) په داسې فکر او احساس بناء وي چې هغه د اسلامي عقیدې او نظریاتو خلاف وي یا په ځانګړي ډول هغه نوم چې په هغې سره د توحید عقیدې ته زیان رسیږي ، لکه نبي بخش ، عبدالرسول (سخي داد) داسې نور.

۲ .... داسې نوم چې فخر، غرور یا لویې ترې څرګندیږي.

۳ .... داسې نوم چې غیراسلامي خواهشات او آرزوګانې ترې څرګندیږي ، او د الله جل جلاله له رحمت څخه لرې والی ترې په ډاګه کیږي.

۴ ....داسې نوم چې د خپل ذات سره ترې ګناه او بدي لور ته نسبت کیږي لکه عاصیه ، حارقه ، حرب ، شهاب او داسې نور.

۵ .... داسې نوم چې تحقیر ، تذلیل یا تمسخر ترې څرګندیږي.

## الله جل جلاله ته خوښ نومونه

حضرت ابو وهب رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلي دي: ( د پیغمبرانو په نومونو سره نومونه ږدئ ، الله جل جلاله ته خوښ نومونه عبدالله او عبدالرحمن دي او خوږه نومونه حارث او همام دي او ډېر ناخوښ نومونه حرب او مرة دي )

د ( الله ) لفظ د خدای جل جلاله ذاتي نوم دی ، په اسلام کې رحمن د الله جل جلاله ذاتي نوم ندی ، البته د اسلام نه مخکې په ځینو قومونو کې رحمن د الله جل جلاله ذاتي نوم و ، له دې امله د رحمن نوم دالله جل جلاله له نورو صفاتو څخه فضلیت لري.

په حدیث شریف کې د دې دوو نومونو ( عبدالله او عبدالرحمن ) ذکر کولو مطلب دا ندی چې بس همدا دوه نومونه دې کېښودلی شي او همدا دوه نومونه الله جل جلاله ته خوښ دي ، ممکنه ده چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دا دوه نومونه پدې خاطر ذکر کړي وي چې په قرآن مجید کې د عبد اضافت سره همدا دوه نومونه راغلي دي.



حارث : هغه سړي ته ویلی کیږي څوک چې دمعاش (کرونده) کوي ، که هغه په حلالو اسبابو سره دولت ګټې بیا هم غوره ده او که د آخرت په ګټلو کې بوخت وي بیا خو ښکاره خبره ده چې څوک ترې غوره نشي کیدای.

همام : د پخې ارادې خاوند ته وایي ، څوک چې د یو کار نه وروسته په بل کار پسې کیږي.

حرب : جګړې ته ویلی کیږي او ښکاره خبره ده چې جګړه ښه کار ندی.

مرة : تروش شي ته ویلی کیږي او تروش شی زیاتره ښه نوي.

په ښایسته نوم سره نیک پالي حضرت یحی بن اسعد رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د یوې اوښې د لوښلو په اړه وپوښتل:

(هغه اوښه به څوک ولوښي؟ یو سړی پاسېده ، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل ستا نوم څه دی ؟ هغه ورته وویل زما نوم مرة دی . رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل کېښېنه . بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم پوښتنه وکړه اوښه به څوک

ولوېشي ؟ يو سړی ولاړ شو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل ستا نوم څه شی دی ؟ هغه ورته وویل زما نوم ؛ حـرب ؛ دی . رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل کښېنه ، بیا یې وویـل دغه اوښه به څوک ولوېشي ؟ یو سړی ولاړ شو ، رسـول الله صـلی الله علیه وسلم ورته وویل ستا نوم څه شی دی ؟ هغـه ورتـه وویـل زما نوم یعیش دی . رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویـل ښـه ویې لوېشه )

همداسې یو حدیث امام بخاري رحمة الله علیه پخپل کتاب کښې رانقل کړی دی .

( رسول الله صلی الله علیه وسلم لـه خلکـو څخـه وپوښـتل ؛ زمونږ دغه اوښه به څوک بوځي ؟ یـا یـې دا وویـل څـوک بـه یـې ورسوي ؟ یو سړي وویل زه ( زه به یې بوځم ) رسول الله صـلی الله علیه وسلم ترې وپوښتل: ستا نوم څـه دی ؟ هغـه ورتـه وویـل زمـا نوم دا دی ، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل کېښـنه .بیـا بل کس د دې مقصد لپاره پورتـه شـو . رسـول الله صـلی الله علیـه وسلم له هغه څخه هم د نوم وپوښتل ستا نوم څه دی ؟ هغـه ورتـه وویل : زما نوم دا دی . نـو رسـول الله صـلی الله علیـه وسـلم ورتـه وویل : کښېنه بیا دریم سړی پاسېده ، له هغه څخه یـې هـم د نـوم پوښتنه وکړه ؟ هغه ورتـه وویـل زمـا نـوم ناجیـه ده . نـو رسـول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل ته د دې کار لپاره مناسب یې ).

## د حضرت عمر رضی الله عنه یوه لطیفه

حضرت عمر رضی الله عنه له یو سړي څخه وپوښـتل ، سـتا نوم څه شی دی ؟ هغه ورته وویل ؛ انگار ؛ بیـا یـې تـرې وپوښـتل ستا د پلار نوم څه شی دی ؟ هغه ورته وویل شـغله ، بیـا یـې تـرې وپوښتل له کومې قبیلې څخـه یـې ؟ سـوزیدونکي ، بیـا یـې تـرې وپوښتل ستا ځای چرته دی ؟ ویې ویـل : د اور پـه گرمـه غونـډۍ باندې ، تـرې ویـې پوښـتل : د اور پـه کومـه غونـډۍ ؟ هغـه ورتـه وویل : د اور لمبو په غونډۍ باندې، چې کله یې دا خبره واورېـده نو عمر رضی الله عنه ورته وویل زر کور تـه ولاړ شـه ، د کـور دې خبر واخله هغوی ټـول سـوځیدلي دي ،( کلـه چـې کورتـه ولاړ ) همغسې وشول لکه څنگه چې حضرت عمـر رضـی الله عنـه ورتـه ویلي وو.( جمع الفوائد )

## د نوم احترام

حضرت ابو رافع رضی الله عنه وایي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ویلي دي : کله چې تاسې د یو چا نـوم محمـد کېـږدی نو هغه مه وهئ او مه یې محروموئ . ( جمع الفوائد(

او حضرت انس رضی الله عنه وایي چې رسول الله صـلی الله علیه وسلم ویلي دي:

)تاسې د ځامنو نومونـه محمـد هـم ږدئ او بیـا پـرې لعنـت وایی او ملامت کوی یې هم(. !

یعنې د دې نوم په احترام کـې لـه ځـامنو سره بـده رویـه مـه کوئ . بې له دې هم د ځامنو سره بده رویه منع ده او کـه چرتـه د کمکي نوم محمد وي نو باید لا زیات احترام یې وشي ځکه چې د دې نوم احترام هم ضرور دی.

## د رسول الله صلی الله علیه وسلم انتخاب کړي نومونه:

۱ـ د حضرت عبدالله بن سلام رضی الله عنـه څـوی حضـرت یوسف وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم زمـا نـوم یوسـف کېښود ، زه یې په خپله غېږه کې کېښـنولم او زمـا پـه سر یـې لاس راتېر کړ .( الادب المفرد(

۲ ـ حضرت ابوموسی رضی الله عنه وایي کله چې زما لومړی ځوی پیدا شو نو ما هغه د رسول الله صـلی الله علیـه وسـلم خواتـه یووړ . نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه نوم ابراهیم کېښود ، خرما یې وچوبله او په خوله کې یې ورکېښـوده ، د خیـر او برکـت دعا یې ورته وکړه او بیا یې ماته راکړ . ( الادب المفرد )

۳ ـ حضرت علي کرم الله وجهه هم د خپلو درې واړو ځامنو نومونه حرب کېښودلي ول، خو رسول الله صـلی الله علیـه وسـلم د هغوی نومونه په حسن ، حسین او محسن سره بدل کړل

## نوم بدلول

رسول الله صلی الله علیه وسلم به د نومونو زیات خیال سـاته ، کله به چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم مخې تـه داسـې نـوم راغی چې هغه به د یو ا ړخه بد و نو هغه به یې بدل کړ او بـل ښـه نوم به یې پـرې کېښـود . رسـول الله صـلی الله علیـه وسـلم د ډېـرو ښځو او سړیو نومونه بـدل کـړي دي او پـر ځـای یـې ښـه نومونـه

اېښي دي . که د چا نوم به د توحيد عقيدې مخالفه معنی درلوده يا به بې معنی و او يا به د بد شي نوم و يا به غلطه معنی پکې پراته وه يا پکې خپل ذات طرف ته د بدي نسبت کېده يا به پکې د خپلې لويي او پاکوالي ځرګندونه کېده او يا به يې بل کوم بد اړخ درلود نو رسول الله صلی الله عليه وسلم به بدل کړ او پرځای به يې ښه او ښايسته نوم کېښود.

حضرت عايشه رضی الله عنها وايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم به خراب نومونه بدلول . (جامع الترمذي)

## د نوم بدلول

هاني ابن زيد رضی الله عنه د خپل وفد سره د رسول الله صلی الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شو . رسول الله صلی الله عليه وسلم خبر شو چې د هغه کنيت ابوالحَکم دی . رسول الله صلی الله عليه وسلم هغه راوغوښت ورته يې وويل : حَکمه ته خدای يې ؟

او حکم کول د هغه حق دی . تا د حَکم کنيت ولې کېښودلی ؟

ابن زيد ورته وويل دا وجه نده چې زه له الله ج سره پدې حق کښې ځان شريکول غواړم بلکې په اصل کې کله چې زما قوم په خپل مېنځ کښې په څه خبره باندې اختلاف راشي نو دوی زما خواته راځي ، زه د دوی په مينځ کښې په سهي توګه فيصله کوم ، دواړه لوري زما په فيصله خوشحاله کيږي او مني يې . رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وويل تا څومره ښايسته نکته بيان کړه ! بيا رسول الله صلی الله عليه وسلم تري وپوښتل . آيا ستا کوم ځوی نشته ؟ ابن زيد رضی الله عنه ورته وويل چې زما درې ځامن دي ، شُريح ، عبدالله او مسلم . رسول الله صلی الله عليه وسلم ترې وپوښتل په دوی کښې کوم يو مشر دی ؟

ابن زيد ورته وويل : ( شريح ) له ټولو څخه مشر ـ دی . رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وويل بيا ستا کنيت ( ابوشريح ) دی . ده ته او د اولاد په حق کښې يې دعا هم وکړه . او رسول الله صلی الله عليه وسلم دا هم واوريدل چې په دې وفد کې يو کس د عبد الحَجَر په نامه يادېږي . نو رسول الله صلی الله عليه وسلم ترې وپوښتل ستا نوم څه شی دی ؟ هغه ورته وويل ( عبدالحجر ) رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وويل ، نه ( عبدالحجر نه بلکې )ستا نوم عبدالله دی.

شريح وايي کله چې هاني ابن زيد رضی الله عنه د خپل کلي څخه راستون شو نو د رسول الله صلی الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او پوښتنه يې وکړه اې د الله رسوله صلی الله عليه وسلم ماته دا ووايه چې په کوم کار کولو سره به زه يقيني جنت ته داخل شم . نو رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وويل د دوو خبرو خيال ساته : د خلکو سره په ښه چلند خبرې کوه او ښه پرېمانه ډوډۍ تقسيمه وه . ( الادب المفرد)

حضرت عبدالرحمن رضی الله عنه وايي زه د رسول الله صلی الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شوم نو رسول الله صلی الله عليه وسلم له ما څخه وپوښتل ستا نوم څه شی دی ؟ ما ورته وويل زما نوم عبدالعزی دی . هغه راته وويل : (عبدالعزی ) نه ستا نوم عبدالرحمن دی . او په بل روايت کښې راغلي دي چې ما ورته وويل زما نوم عزيز دی نو رسول الله صلی الله عليه وسلم راته وويل عزيز خو الله جل جلاله دی.

حضرت ابن عمر رضی الله تعالی عنه وايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم عاصيې ته وويل ته جميله يې .( الادب المفرد)

د صحيح مسلم روايت دی چې د عمر رضی الله عنه د لور نوم عاصيه و نو رسول الله صلی الله عليه وسلم بدل کړ او جميله نوم يې په کېښود.

محمد بن عمرو وايي چې يوه ورځ د ابو سلمه لور زينب خواته ولاړم نو زينب زما د خور د نوم وپوښتل څوک چې له ماسره تللې وه ، ما ورته وويل د دې نوم بَره ده . هغې وويل چې نوم يې بدل کړئ ، ځکه چې کله د رسول الله صلی الله عليه وسلم نکاح له زينب بنت جحش سره وشوه نو د هغې نوم هم بره و نو رسول الله صلی الله عليه وسلم د هغې نوم بدل کړ او زينب يې پرې کېښود . او کله چې د ام سلمه رضی الله عنها واده وشو د هغې خواته رسول الله صلی الله عليه وسلم ورغی نو رسول الله صلی الله عليه وسلم تر غوږ شول چې مور مې بره بره (په نوم ) غږ کوي ، نو رسول الله صلی الله عليه وسلم وويل خپل نېکوالی

خلکو ته مه ښکاره کوه . الله جل جلاله ښه پوهیږي چې په تاسو کښې څوک نېک عمله او څوک بدعمله دی او ویې ویل د دې نوم زینب کېښږدئ ، زما مور ام سلمه رضی الله عنها وویل : سمه ده دا نور زینب ده.

دا مې چې واورېدل زینب ته مې وویل بیا نو دې ته نوم خوښ کړئ ، هغه نوم کېښږدئ کوم چې رسول الله صلی الله علیه وسلم کېښودلی و نو محمد بن عمر د هغې نوم زینب کېښود.

رائطه بنت مسلم وایي چې زما پلار مسلم ماته وویل زه د حنین په جنگ کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره موجود وم ، رسول الله صلی الله علیه وسلم له ما څخه وپوښتل ، ستا نوم څه شی دی ؟ ما وویل زما نوم غراب دی ، رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل نه ، ستا نوم مسلم دی . (الادب المفرد)

عایشه رضی الله عنها وایي چې یو سړي د رسول الله صلی الله علیه وسلم په مجلس کښې یادونه وکړه چې هغه ته شهاب (شغله ) وایي نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل غراب نه بلکې ته هشام یې ( الادب المفرد).

د عبدالرحمن بن سعید مخزومي د څوی نوم د اسلام څخه مخکښې (الصرلم) و بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم په سعید سره بدل کړ . رسول الله صلی الله علیه وسلم له سعید څخه وپوښتل ، زما او ستا په مېنځ کښې څوک مشر دی ؟ سعید رضی الله عنه ورته وویل ته له ما څخه مشر یې او زه په عمر کښې زیات یم....

رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل تاسې د خپل څوی نوم حباب مه ږدئ ، ځکه چې حباب شیطان دی ، ماشوم شیطان نه بلکې عبدالرحمن دی . ( جمع الفوائد )

حباب مار ته ویلی کیږي او ام حباب دنیا ته وایي ، له دې امله رسول الله صلی الله علیه وسلم د حباب نوم څخه منع کړې ده.

# د یو مشهور پروفیسور خبرې!

**نوموړی وایي:**

**( ۲۲) کاله مې درس ورکړ؛**

**.۱۱هېڅکله مې حاضري نده اخیستې، ځکه ټولگی باید دومره زړه راښکونکی وي چې زده کونکې باید په خپله راشي.**

**.۲هېڅکله مې هڅه نده کړې چې په ټولگي کې ډار او ویره حاکمه شي، ځکه ټولگی د زده کونکو دوهم کور دی.**

**.۳هر زده کونکی چې ناوخته راغلی ما د گډون اجازه ورکړې، ولو که د ټولگي پای ته لس دقیقې پاته وې، معنی دا چې احساس د مسؤلیت لري.**

**.٤هېڅکله مې خبره له دوه ځلو نه ډېره نده تکرار کړې، ځکه پوهېدم چې ټول دومره ژور غوږ دي چې د بیا تکرار اړتیا نه وه.**

**.٥هېڅکله مې پوره ۹۰ دقیقې درس ندی ورکړی، ځکه پوهېدم چې د لایقو، منځنیو او کمزور زده کونکو حوصله فرق کوي.**

**.٦هېڅوک مې په نغدو پیسو ندي جریمه کړي، ځکه پوهېدم چې په ټولگي کې به یتیم وي یا نادراه.**

**.۷هېڅکله مې زده کونکي د خپلې دروازې شاته په تمه ندی پرې ایښې، ځکه پوهېدم چې د دروازې شاته ودرېدل غرور ماتوي.**

**.۸تل مې د فردي سزا پر ځای ډلیزه سزا غوره بللې، ځکه پوهېدم چې ډلیزه یې نه هېردونکې تفریح خو فردي هغه یې بیا زړونه ماتوي.**

**.۹تل مې تختې ته هغه شاگرد را بللې چې په یو څه پوهېده، او بیا مې ترې یواځې هغه څه پوښتل چې ده یې ځواب درلود**

# هلته

## چې د ژوندیو هدیرې دي ....

ظهیر فرهاد

برما یا میانمار داسیا په جنوب ختیځ کې پروت هېواددی چې له بنګله دیش، چین، هند، لاوس او تائي لینډ سره نښتې پولې لري، په ۲۰۱۴زکال کې د تر سره شوې سرشمېرنې له مخې دوګړو شمیر یې دڅې خلاف ۵۱ملیونه شاوخوا دی، پلازمینه یې نیپیډ او لوی ښار یې یانګون دی اکثریت خلک یې دبودمت دین پیروان دي او مسلمانان پکې ترنورو لوی اقلیت دي.

بودمت دین منونکي هلته داسلام دمبارک دین له غلبې اندیښنه لري، څنګه لویدیځو هېوادو کې ځیني هېوادونه د اسلام دپراختیا او اکثریت نه اندیښنمن دي.

هم دا ډار او اندیښنه قوي لا مل شوې چې برما کې د بود مت پیروان داسلام دمخنیوي په وړاندې بېلابېلې وحشیانه او ظالمانه حربې کاروي او د مسلمانانو په څرګنده ټولوژنه او نسل وژنه لګیادي.

د بودمت پیروان وایي: مسلمانان برماته له بهر څخه راغلي او دوی یې له برما نه هغسې- ویستل په پام کې لري څنګه چې له هسپانیې څخه عیسویانو مسلمانان وویستل

ښکاره ده چې په برما کې مسلمانان له پیړیو، پیړیو راهیسې شتون لري آن دعباسي خلیفه هارون رشید دخلافت په زمانه کې دمسلمانو سوداګرو یوه ډله راغلې وه او دبرما په ګاونډ اراکان کې میشت وه، چې دسوداګرۍ ترڅنګ اسلامي تبلیغ هم کاوه او په لنډ وخت کې لوی شمیر خلک د اسلامي لارښوونو تراغیز لاندې راغلل مسلمانان شول، کرار کرار دمسلمانانو شمیرډېرېده چې په ۱۴۳۰ز کال کې دسلیمان شاه په نوم یوتن اراکان کې یو خپلواک اسلامي دولت رامنځته کړ ، هغه دولت تر درې نیمو پیړیو دوام وکړ ، په دغه دوره کې اراکان کې ښایسته مسجدونه جوړشول، مدرسې او جامعې ودانې شوې او په کرنسۍ یا سیکه یې د[ لا اله الا الله محمد رسول الله] کلیمه کندلې وه او دهغې لاندې د[ ابوبکر، عمر، عثمان، علي(M) نومونه درج وو.

وړاندې اراکا ن جلا هېواد او برما یې ګاونډ کې بل هېواد و، په اراکان مسلمانان واکمن وو او په برما دبودمت پیروان ، دبودایانو نه غوښتل مسلمانان ددوی په ګاونډ کې داوږدې مودې لپاره حکومت ولري، په همدې بد نیت سره یې په ۱۷۸۴زکې په اراکان حمله وکړه او هلته یې دمسلمانانو حکومت دړنګولو وروسته مسلمانانو سره دبد وحشیانه چلندکولو سربیره د اراکان خپلواک حیثیت لغوه کړ او د برما سره یې ضم کړ.

ددې وروسته برمانو یې په میانمار ونومولـه په ۱۸۲۴ز کال کې برتانیې برما قبضه ونیوه ،چې ترسل کلو هغه وربانـدې واکمنه وه په دې توګه برمایان تر سل کلو دانګریزانو غلامان پاتې دي ، په ۱۹۴۸ز کې یې له انګریزانو ازادي ترلاسه کړه ، مسلمانانو غوښتل چې دپاکستان سره ځانونه ضم کړي خو برتانوي استعمار دهغوی دا غوښتنه او نه منله او دبرما پورې یې وتړله ، دهغه مهال وروسته برما کې بودایانو دمسلمانانو داسلامي پیژندګلوۍ ختمولو لپاره مختلفې دسیسې او حربې وکارولې چې په سبب یې شاوخوا پنځه لکه

مسلمانان هجرت کولو ته اړشول او ګاونډیو هېوادو ته لاړل ، دسعودي عربستان پاچا ملک فهد دمسلمانانو ځورونکي حالت په لیدو داراکان مسلمانانو ته دخپل هېواد دروازې خلاصې کړې او لوی شمېر اراکاني مسلمانان په سعودي عربستان کې میشت شول په خاصه توګه مکه مکرمه کې ډېر میشت شول ، نن دمکې مکرمې په سلو کې ۲۵ سلنه نفوس داران کان خلک جوړوي ، کومو مسلمانانو چې ځ دهجرت لپاره توښه او وسایل نه درلودل هغوی هلته دبودایت وحشیانوته پاته شول ، بودایانو په هغوی دژوند کړی تنګه کړه او داسلام په تبلیغ یې بندیزونه ولګول دمسلمانانو اوقاف ځایونه یې مال ځر وګرځول ، مسجدونه او مدرسې یې ونړولې لاسپیکر کې یې اذان بند کړدمسلمانانو ماشومان یې له زده کړو محروم کړل په حکومتي څوکیو دمسلمانانو په ګومارلو بندیز ولګاوه تردې پورې چې په ۱۹۸۲ز کال کې یې مسلمانان دتابعیت له حق څخه هم محروم اعلان کړل دمسلمانو نجونو دواده لپاره ۲۵ او دهلکانو لپاره ۳۰ کاله عمر تحدید کړ دا هم په هغه صورت کې چې دامنیتي ارګانو څخه واده کونکي لپاره اجازت لیک ترلاسه کول شرط دی ،دې ټولوناخوالو او ظلمونو په مجموع کې مسلمانان له سخت ژوند سره مخ کړل دمسلمانانو اقتصادي حالت ورځ په ورځ مخ ځوړشو ، چې ترننه پورې په خوارۍ او تنګۍ کې ژوند کوي ماشومان یې سرلوڅ، پای لوڅ په زړو کالیوکې ګرځي میرمنې یې له نارینه وو سره په زمکو کې کارونه کوي هو! ددې ټولو وحشتونو سربیره یوشی چې دزیاتي ستاینې او ډاډ وړدی هغه دادی چې ترننه داسې راپور ندی راغلی چې داراکان مسلمانانو دې د دنیاوي لالچونو او یا سختیو له ډاره ایمان او اسلام نه انکار کړی وي ترننه دخپلو اسلامي شعایرو سره کلکه مینه لري

څو کاله وړاندې لس تنه تبلیغیان دمسلمانانو په کلیو کې داسلامي تبلیغ لپاره ګرځیدل دوحشي بودایانو دیوې ترهګرې ډلې لخوا هغوی ونیول شول په چړو او تبرګیو یې ووهل ، دهغوی ژبې یې په رسیووتړلې او په راښکولو راښکولو یې شهیدان کړل ، مسلمانانو ته دهغوی سره ظلم خلاف احتجاج ته اووتل په مقابل کې یې بودایي وحشتګر را ولاړ شول دهغه کلې ۸سوه کورونوته یې اور واچاوه، بیا دهغه وروسته بل کلي ته ورغلل هغه کې یې ۷سوه کورونه وسیزل دهغه نهوروسته په دریم کلی کې یې ۱۶سوه کورونه وسیزل په دې ټولو کې دبرماپوځ او پولیس اور اچونکو سره ګام په ګام مله ول ددې وروسته ۹ زره خلکو چې په برما کې خپل ژوند په خطر کې لیده، هغوی دوچې او سمندر له لارې بنګال ته کډه شول ، خو دبنګال ظالم حکومت هغوی ته دپناه ورکولو نه انکار وکړ، لږ وروسته پوځ او بودایانو په ګډه دمسلمانانو نسلي وژل نورهم زیات کړل ټوله نړۍ چوپه خوله وه، نه کفري هېوادو احتجاج وکړ او نه په اسلامي هېوادو کې چا غیرت وکړ دخواله رسنیو له لارې دمسلمانانو زړه بوږنوونکي انځورونه په نړۍ کې ولیدل شول عامو مسلمانانو احتجاج شروع کړ دهغه وروسته په نړیوالو فشار زیات شو ،ملګرو ملتونو برما ته دڅېړنو په موخه هیئت واستاوه دبرما حکومت هغه ته دپلټنو پوره اجازه ورنکړه

هغه دنیمګړو پلټنو په نتیجه کې په ۵۶ مخونو کې یو راپور خپور کړ، په هغه کې راغلي : دبرما مسلمانان دزمکې پر مخ ترټولو مظلوم اقلیت دی!! او لوی شمیر مسلمانان ژوندي په قبرونو کې خښ کړای شوي دکوچنیانو لاسونه تړل شوي ژوندي په خاورو کې دفن شوي دي هم دا راز دبشري حقوقو راپور کې هم راغلي چې بودایانو مسلمانان په ډېره بې رحمۍ سره ژوندي ترخاورو لاندې کړې او په دې لړ کې هغوی ګڼ اجتماعي قبرونه هم مندلي لنډه دا چې برما کې دمسلمانانو سره دکیدونکو ظلمونو داستان ډېر زړه دردونکی دی ، دنړۍ اسلامي واکمن هغسې دغفلت په خوب ویده دي د مظلومو مسلمانانو ددفاع او مرستو نه غافل دي الله تعالی په ټولو مسلمانانو رحم کړي په خاصه توګه دبرما مسلمانان چې ډېر مظلومان او بې دفاع دي الله تعالی دې ورته ددې ستر ددښمن له مونګلو څخه نجات ورکړي امین

# خمار حسن

شاعر: عرفان الله عرفاني

پــــروت پـــرې گـــرد غُبـــار دی څنـــې څنـــد وهـــه
حُســـن دې خمـــــار دی څنـــې څنـــد وهـــه

خلـــک درتـــه گـــوري ســـترګې ستـــرګې دي
نـــم پـــر بڼـــو بـــار دی څنـــې څنـــد وهـــه

ســـتا وربښـــمنو زلفـــو تـــه تـــرې ګـــل راوړم
هلتـــه یـــو معـــمار دی څنـــې څنـــد وهـــه

کـــلي کـــې بـــه ګـــوره ښـــه نېشـــه ګرځـــې
مـــات درتـــه اغیـــار دی څنـــې څنـــد وهـــه

ســـتا ښـــکلا د هـــر ښـــکلي غـــرور مـــات کـــړ
دا د مینـــې ښـــار دی څنـــې څنـــد وهـــه

زیـــړ نـــرګس نیـــولی د خـــزان تبـــې
ګـــل پـــه زړه بـــېمار دی څنـــې څنـــد وهـــه

عشـــق تـــه دې منصـــور ګوتـــه پـــه غـــاښ شـــولو
خـــوښ دې خومـــره دار دی څنـــې څنـــد وهـــه

پـــام کـــړه چـــې رقیـــب دې لـــه نظـــر نکـــړي
ښـــکلی دې رخســـار دی څنـــې څنـــد وهـــه

تېـــرې اوږدې شـــپې د تـــربمیـــو شـــوې
اوس رنګـــین ســـهار دی څنـــې څنـــد وهـــه

راغلـــل بیـــا ټانګونـــه کـــړه ریمـــوډ عـــیار
وخـــت د انفجـــار دی څنـــې څنـــد وهـــه

راشـــه ( عـــرفاني ) غـــزل درولـــیکم
یـــار دې انتظـــار دی څنـــې څنـــد وهـــه

# Srak Magazine

## تروریست کیست؟

### به یاد آورید که...

تروریست‌ها کسانی هستند که 20 میلیون نفر از بومی‌های استرالیا را قتل‌عام کردند.

تروریست‌ها کسانی هستند که 100 میلیون نفر سرخپوست را در آمریکای شمالی و 50 میلیون را در آمریکای جنوبی کشتند.

تروریست‌ها کسانی هستند که 2 میلیون نفر ویتنامی را کشتند.

تروریست‌ها کسانی هستند که ژاپن را با بمب اتمی مورد هدف قرار دادند.

تروریست‌ها کسانی هستند که میلیونها نفر مسلمان را در افغانستان و عراق قتل‌عام کردند.

تروریست‌ها کسانی هستند که 2 میلیون مسلمان بوسنی را کشتند و به زنان تجاوز کردند.

تروریست‌ها کسانی هستند که زنان و کودکان را در صبرا و شتیلا ذبح کردند.

تروریست‌ها کسانی هستند که مسلمانان را زنده‌زنده در میانمار (برمه) و آفریقای مرکزی سوزاندند.

**تروریست‌ها کسانی هستند که به محمد ﷺ ناسزا می‌گویند و به حدود 2 میلیارد مسلمان توهین می‌کنند**

